د خپلې مور له مړینې وروسته او ۳۳ کاله د وارثې په توګه په سختو کې د ژوند کولو وروسته سلطان جهان په ۱۹۰۱ کې د ۴۳ کلونو په عمر کې نوابه شوه. د مور سره خرابو اړیکو، په ځوانۍ کې د سازشونو او د دوو لونو د مړینې درد یې ولید. د هغې د مشرې نازولې لور بلقیس له مرګه لږ وروسته یې دویمه لور آصف جهان هم د دولسو کلونو په عمر کې د یوې نامعلومې ناروغۍ له امله مړه شوه.

د سلطان جهان بېګم روزنه د خپلې نیا او د مور قدسيې بېګم په لاس شوې وه. دا په عقیده ټینګه مسلمانه وه او د عیش او عشرت ژوند یې نه خوښاوه. د نوابۍ د واک د ترلاسه کولو وروسته سلطان جهان چې د خزانې حال ولید، نو هلته هېڅ نه وو. د شاه جهان بېګم د دورې اداري فساد هغه ټوله شتمني زبېښلې وه، چې د سلطان جهان نیا په خوارو راټوله کړې وه. نه یوازې دا بلکې ډېر پورورې هم وو. لکه د یوې مبارزې غوندې هغې خپلې متې ونغښتلې او پر کار یې پیل وکړ. خپلې شخصي پیسې یې حکومتي خزانې ته ورواړولې چې د کارکوونکو تنخواګانې پرې پوره کړي. بیا یې خپل بااعتماده او ایماندار کسان پر لوړو څوکیو ولګول. فاسد او رشوت خواره یې لرې کړل.

دې ډېر کار په خپله کولو، ټول فایلونه او د حکومتي کار سندونه به یې په خپله مطالعه کول. د هغې د سختۍ نتیجه دا شوه چې د وخت لومړي وزیر عبدالجبار خان استعفا ورکړه

سلطان جهان په دې ډېره خواشینې نه شوه او د لومړي وزیر کار یې هم پر خپله غاړه واخیست. هغې به د لرې پرتو کلیو سفرونه کول او د مځکې او کر حال به یې په خپله معلومولو. انګرېزان چې ددې له کار

او محنت نه خبر شو. نو یې پوره ملاتړ ورسره وکړ. هغې خپلو دوو زلمیو زامنو نصرالله او عبیدالله ته هم کارونه سپارلي وو. او وړوکی اته کلن زوی حمیدالله به یې هم له ځان سره ګرځاوه.

د سلطان جهان خاوند احمد علي ته د سلطان الدوله خطاب ورکړی شوی و او کله چې دا نوابه شوه، نو د خاوند د کورنۍ خلک یې، چې له جلال اباده ورغلي وو په نوابۍ کې د خپلو ګټو لپاره په راټولېدو بوخت شول. د احمدعلي خور چې چندابي نومېده د هغې اوه پېغلې او ښـــایسته لونې وې. په دوی کې دوه قیصر جهان او شهریار جـهان د نوابې د دوو زامنو لپاره کنښنول شوې. د واده تیارۍ پیل شوې او هم په دې ورځو (۱۹۰۱) کې احمدعلي د زړه د حملې له امله مړ شو.

د سلطان جهان لپاره دا یو لوی ټکان و. ځکه احمد علي ددې لپاره یوه لویه تکیه وه او له ماشوموالې نه یې ورسره مینه درلوده.

د دواړو زامنو ودونه یې وځنډول خو د ځلوښتۍ وروسته یې ودونه وکړل او زامن یې له خپلو مېرمنو سره بېلو کورونو کې مېشته شول.

په ۱۹۰۲ م کال کې له دې ټولو بحرانونو تر راوتلو وروسته سلطان جهان په ډيلي دربار کې د ګډون لپاره په لومړي ځل په اورګاډي کې سفر وکړ. له هغې سره ۱۴۲ کسان مله وو. هغې لا پخوا ۴۲۲ کسان د ځای او کېږدیو لټولو لپاره ډيلي ته استولي وو.

سلطان جهان د خپلو دوو مشرانو زامنو د تعلیم لپاره هم هغسې دودیزه طریقه کارولې وه. دوی د اس د سپرلۍ، د توري او غشي ویشتلو تربیه واخیسته. عربي، فارسي او انګرېزي یې زده کړه. د قرآن او حدیث تعلیم یې وکړ.

نصرالله چې مشري زوی يې و له ښکار او موټر سره يې ډېر شوق لرلو. د مور ستر ګې هم ده ته وې چې دی د ځلورو نسلونو نه وروسته د نوابۍ لومړی هلک و.

عبيدالله د ۱۲ کلونو په عمر کې د قرآن حافظ شو. ده له جنګي فنونو سره شوق لاره او سلطان جهان راهڅاوه چې د بهوپال پوځي خدمتونو کې ورداخل شي.

په ۱۹۰۳م کال کې سلطان جهان له خپلو دريو زامنو سره حج ته ولاړه. په دې سفر کې هغه د مدينې او مکې په لاره کې څو واري د عرب بدو قبيلو له خوا له خطر سره مخامخ شوه. ددې پر قافلې حملې وشوې. خو د پنځو مياشتو د سفر نه وروسته بېرته بهوپال ته راوګرځېده. هغې د خپل حج کيسه په يوه کتاب کې وليکله.

د سلطان جهان د دوو زامنو ودونه د جلال اباد د اورکزيو کورنۍ کې شوي وو او ډېر ژر ورته دا جوته شوې وه چې هغوی د بهوپال په حکومتي کارونو کې خپلې اغېزې زياتې کړې وې. سلطان جهان ځان له يوازې پاتې وه. د هغې نګيندو غوښتل چې خپله وړه خور هم حميدالله ته واده کړي. خو د سلطان جهان دا نه وه خوښه هغې د خپلې خسرګنۍ له اغېزو ځان خلاصول غوښتل. دې کتل چې دواړو مشرانو زامنوته يې د خوشامدګرو او بوټپاکو درباريانو ډلې چاپېره وې. هغې نه غوښتل چې ۱۱ کلن حميدالله هم دې کندې ته ولوېږي. اوس د شلمې پېړۍ پيل شوی و او په هند کې د انګريزي تعليم او سياسي شعور په راټوکېدو و.

سلطان جهان بېګم حميدالله لپاره په ټول هند کې د يوه مناسب ښوونځي په لټه کې وه. اخر يې فيصله وکړه چې دی به د بهوپال په الېګزانډرا ښوونځي کې سبق وايي. دا ښوونځی څو کاله مخکې دې

په خپله جوړکړی و. له دې ښوونځي وروسته حمید الله د علي ګړ پوهنتون ته د سبق لپاره ولاړ او اخرله د ۲۰۰ کالو د بهوپال د نوابې کورنۍ لومړی غړی د عصري تعلیم لپاره له بهوپاله ووتلو. د حمید الله د واده لپاره هغې د اورکزیو نه پرته نجلۍ غوښته او خپل یوه با اعتماده استازي کندهاري خان ته یې دا دنده وسپارله چې پېښور ته ورشي او د یوه ښه پښتانه کور نجلۍ د حمید الله لپاره غوره کړي. دی مردان، بنو او کوهاټ پورې ولاړ.

په پېښور کې دی د شاه شجاع د کورنۍ یو ټبر سره مخامخ شو. هلته یې د پنځو کالو یوه نجلۍ ولیده چې د یوه نل لاندې یې لامبل. دا نجلۍ مېمونه سلطان نومېده. د دراني خاندان د شهزاده خپل ټبر دا نجلۍ د کندهاري خان خوښه شوه او سمدستي یې سلطان جهان ته خبر ورواستولو.

هغې هم وخت ضایع نه کړ او د یوولس کلن حمید الله او د پنځه کلنې مېمونې د واده لپاره یې خپل مشر زوی عبید الله او د هغه مېرمنه شهریار دلهن سره له یوې ډلې پېښور ته ورواستول.

د میمونه سلطان ټولې کورنۍ له دې سره بهوپال ته کډه وکړه لکه چې د سلطان جهان سره د احمد علي د کوژدنې پر وخت شوي وو. د درانیانو له راتګ سره په بهوپال کې یو ځل بیا د پښتنو دودونه راتازه شول.

بهوپال ته په راتلو د مېمونې د تعلیم او روزنې لپاره پلان جوړ شو. د عربي، اردو او فارسي د زده کړو سره سره هغې ته د اس سپرلۍ، د ټوپک چلولو، او د ستن تار او د ډوډۍ پخولو چل وروښودل شو. د انګرېزي ژبې د زده کړې لپاره هغې ته یوه مېرمنه د اولیور په نوم

وټاکل شوه. د پیانو او وایلن غږولو پرته هغې فرانسوي ژبه هم زده کړه.

سلطان جهان د مېموني په روزنه کې ډېره فعاله وه او په دې خوشاله وه چې د خپل زوی لپاره یې یوه ښکلې ښځه تېارولې. مېمونه سلطان هندي او لویدیز دواړه کلتورونه خپل کړل.

د لومړي ځل لپاره د بهوپال د شاهي کورنۍ یوې غړې له انګرېزانو او اروپایانو سره د هغوی په ژبه ښه په اعتماد خبرې کولای شوې.

د خپل حکومت په لومړیو لسو کلونو کې سلطان جهان پر هر شي خپله ټاپه لګوله. دا له برتانویانو سره نژدې وه او د هغوی په مشوره یې د پولیس، بندي خانو، د اوبه خور او قضایي محکمو کې اصلاحات راوستل. هغه په خپلو یادښتونو کې لیکي:

"زما خپل کارونه د ورځې اتلس ساعتونو ته غزېدلي وو. د سهار له اوو بجو د شپې تر دولس بجو ماته په دربار کې د ولسوالیو، د تاڼو افسران او جاګیرداران مستجر موافع دار راځي، چې دوی سره زه د شاوخوا سیمې په اړه خبرې کوم.

لس بجې زه ناشته خورم. له هغې وروسته زه هغه ټول درخواستونه ولولم چې له تېرې ورځې نه راپاتې وي. دا چې وشي نو بیا د مالیې وزیر راځي او د مالیې کاغذونه راښیي او موږ د پیسو جاج اخلو. دا کاغذونه د هغه د مشورې او تصویب او د رایو په رڼا کې جوړ شوي وي او زما د وروستۍ فیصلې لپاره راوړل کېږي. وروسته هغه لیکي چې دوه بجې دیوان ټهاکر پرشاد د محکمو کاغذونه زما په موجودګۍ کې مستجارانو ته ورکوي. تر شپږو دا کار روان وي. شیخ محمد حسن او منشي اسرار حسن خان د تېرو مالیو د راټولولو کاغذونه راوړي."

سلطان جهان د شپې اته بجې ډوډۍ خوري او له هغې وروسته د شپې تر یولسو بجو ان تر نیمې شپې لیکونه ولولي. ځوابونه ورته ورکوي. د طاعون دخپرېدو د مخنیوي لپاره کارونه ووېشي او داسې نور.

سلطان جهان مشاورتي مجلس یو واري بیا رامنځته کړو او د ښاروالۍ انتخاب یې وکړو. د ساري ناروغیو د مخنیوي لپاره یې عامو خلکو ته د ستنو وهلو او د مفتو داروګانو د وېشلو انتظام وکړ.

هغې په لومړي ځل په بندي خانه کې له بندیانو نه د کار اخیستلو لپاره د لاسي توکو د جوړولو. اوبدلو او د بوټلو تربیې تګلاره جوړه کړه.

په خپل ورځني ژوند کې هغه ډېره مذهبي ښځه وه. پرده به یې کوله او ان مېمونه سلطان ته به یې هم په پرده کې د اوسېدو غږ کاوه. خو د سرکاري کارونو لپاره به یې له سړو سره لیدل. انګرېز مېرمنو ته دا لارښوونه وه چې د سلطان جهان د لیدو لپاره ورځي، نو خپلې متې به بربنډې نه ساتي. یوه بریتانوي مېرمنه ګریس تهامس سیتهون چې په ۱۹۲۷ کې بهوپال ته تللی و په خپله سفرنامه کې لیکي:

"اوسنۍ بیګم د جینکو لپاره ښوونځی، د ښځو یو روغتون او د لاسي کارونو یو پوهنځی پرانستي دي. دا هر څه په پرده کې کېږي. محترمې نوابې چې هر څه په وس کې وي او اسلامي قانون ورته اجازه ورکوي د ښځو لپاره یې کوي."

"نواب سلطان جهان بیګم د شپږو کتابونو یوه باصلاحیته لیکواله ده. دا د انجینېرۍ، موسیقي، پخلي او د ستنې د کار پوره علم لري. او د علي ګړ پوهنتون ریسه (چانسلره) ده."

وروسته نوابې سره د چای د څښلو لپاره چې ورځي نو د سلطان جهان په اړه ليکي:

''ددې د اوږې په شان سپين ويښته و. لباس يې يو د کمې(بټن) لرونکی کميس او ورېښمين پرتوګ وو او نسواري کشميري شال يې پر اوږو لکه د سارۍ تاوکړی و. نه د دې پر سر تاج و. نه ورېښمينه چپنه او نه هم ځلېدونکي کالي پتري. خو وقار او دروند شخصيت ددې له مهربانو سترګو ځرګند و. داسې سترګې چې هم يې غم ليدلی و او هم يې بريالیتوب ترلاسه کړی و.

جلالت مآب her highness په انګرېزي هم خبرې کولای شي خو ماسره يې خپله ژبه اردو کې خبرې کولې. په دې ژبه کې يې ليکنې هم کړې دي. په دوی کې يو د دې د مور او نيا او يو د دې د خپل ژوند ليک دی. نور کتابونه يې د ښوې مسلمانې کورنۍ او د پردې په دفاع کې ليکلي دي.''

مېرمن ګريس وروسته بيا د سلطان جهان د دريو لمسيو ذکر کوي. چې د خپلې نيا د سلام او تعظيم وروسته يې ترې د لوبو اجازه واخيسته. د مېمونه سلطان په اړه وايي دا به د درويشتو کالو وي او ډېره نرۍ او ښايسته وه. ددې کره وړه شاهانه وو او خوشاله معلومېده. دا په سخته پرده کې له خپلې خوابښې سره د شاهي ماڼۍ په نورو خونو کې ژوند کوي.

د هغې دربار ته به د يورپ اميران هم ورتلل. په ۱۹۰۷ کې هغې ته د هند د امپراتورۍ لوی اعزاز ورکړل شو. په اګره کې د يوه دربار پر وخت هغه د افغانستان له امير شېرعلي خان سره هم مخامخ شوه او ورسره يې په پښتو او فارسي کې خبرې وکړې.

په دې ورځو کې هغې د حمید الله پر شخصي مځکه ځان ته یوه ماڼۍ د احمد آباد په نوم جوړه کړه. هغه په دې وېرېده چې که مړه شوه نو د نواب سرکاري کور صدر منزل به د جلال آباد پښتانه ترې نه واخلي.

سلطان جهان چې څه وخت حج ته تله، نو په لارې په سمندري بېړۍ کې یې د خپل انګرېز ډاکټر له مېرمنې انځورګري زده کړه. له دې وروسته چې په سلطان جهان هر وخت موقع وموندله نو ځان به یې په دې کار بوخت ساتلو.

په ۱۹۰۲ م کال د بریتانیا شهزاده (ځای ناستی) چې بیا وروسته د پنځم جورج په نوم پاچا شو. هند ته ورغی او په بېلا بېلو دربارونو کې سلطان جهان ده او دده مېرمنې شهزادګۍ مېرې سره ولیدل.

په دې کال په بهوپال کې یوه جرګه او قانون جوړونکې اسمبلي جوړه شوه چې د خلکو د استازیتوب په برخه کې د پرمختګ یو بل ګام و.

په ۱۹۱۱ م کال کې جورج پنځم د خپل پلار له مړینې وروسته د بریتانیا پاچا شو او د هغه د تاجپوشۍ په مراسمو کې سلطان جهان ته هم بلنه ورکړل شوې وه. هغې په ځواب کې انګرېزانو ته ولیکل چې دا په بورقه کې په دې مراسمو کې ګډون کوي. سلطان جهان یوازې بریتانیا ته نه بلکې د نورو اروپایي ملکونو تر څنګ فلسطین، ترکیې او مصر د لیدو لپاره هم پلان جوړ کړ. د هغې دویم زوی عبید الله د زړه په ناروغۍ اخته و. او دې غوښتل که په اروپا کې یې علاج ممکنه وي، نو کېدای شي چې جوړ شي. هغې نصر الله په بهوپال کې د خپل ځای ناستي په توګه پرېښود. عبید الله د هغه مېرمن، حمید الله او وړه مېمونه چې د یولس کلونو وه په دې سفر کې له سلطان جهان سره مله وو.

په ممبۍ کې دوی په بېړۍ کې سپاره شول او په سویز کانال کې په عدن کې ایسار شول. دلته د بېلجیم پاچا او ملکه هم ورسره مله شول. دوی اټالیې او بیا د فرانسې مارسیلز (مارسای) ته ورسېدل. د اروپا خبریالان په بندر کې راټول وو. چې غوښتل یې د هند د یوې ملکې په اړه راپورونه ولیکي او عکسونه یې واخلي. خو سلطان جهان له بېړۍ بهر ګام نه پورته کاوه. اخر پولیس ټول خلک له هغه ځایه لرې کړل او دوی یې اورګاډي ته ورسول. د فرانسې حکومت دا خصوصي ګاډی دوی ته ور اخیستی و. دوی پاریس ته ورسېدل.

ددې سفر ټول حال یوولس کلنۍ مېمونې لیکلی دی. یوځای دا لیکي چې د دوی د هوټل په غسل خانه کې دوې نلکې وې. یوه د تودو اوبو بله د سړو اوبو لپاره. یوه لویه ستونزه د حلالو خوړو وه. د پاریس د مېجیسټیک هوټل په پخلنځي کې یوه پرده ودرول شوې وه او د سلطان جهان اشپز به کې دوی ته حلال خواړه پخول. دوی هلته پنځلس ورځې ایسار وو او میمونه لیکي چې په هوټل کې د ټولو لپاره دوی لس زره روپۍ ورکړې. عبیدالله د علاج لپاره جرمنې ته واستول شو او سلطان جهان رودبار انګلستان channel نه په تېرېدو لندن ته ورسېدله. له دې ځایه ۱۸ میله لرې د رېډ هیل نومي ځای په پېټیسن کورټ نومي کور کې یې کډه واړوله.

تر تاجپوشۍ وړاندې دوی په لندن کې ښه وګرځېدل. په مېلمستیاوو کې یې ګډون وکړ او اخر یې د مراسمو ورځ رانږدې شوه. نو دوی د بکینګهم ماڼۍ سره جوخت یوه هوټل ته راکډه شول.

هغې خپل دواړه زامن او وزیران له ځانه سره بوتلل. خو خپلې نګینډې یې په رېډ هیل هوټل کې پرېښودې.

په مراسمو کې سلطان جهان په بورقه کې ولاړه او عجيبه يې لا دا چې خپل ټول مېډالونه يې د بورقې له پاسه ټومبلي وو. د بريتانيې ورځپاڼو د بهوپال د بېگم په اړه عجيبه کيسې ليکلې. دا چې هغه د دې ځای اوبه نه څښي او خپلې اوبه يې له ځانه سره راوړي دي. دا چې هغه ژوندي چرگان خوري. د اوبو خبره دا وه چې سلطان جهان د زم زم اوبه له ځانه سره راوړې وې او د دې د خوراک لپاره به ژوندي چرگان حلالېدل او بيا به پخېدل. هغه ځکه چې دې د بازار غوښه نه خوړله.

د تاجپوشۍ له مراسمو وروسته سلطان جهان جرمني او ژنيو ته ولاړه او هلته خبره شوه چې په ترکيې کې سخته زلزله راغلې ده، دې سمدستي درې زره پونډه عثماني سلطان ته ورواستول.

د ختيز پر لوري يې خپل سفر جاري وساتلو او په اورگاډي د ويانا له لارې ترکيې ته ولاړه.

په استنبول کې د ترکيې سلطان وزير راغب بېگ د دوی هرکلي ته ولاړ و. دوی يې هوټل کې مېشت کړل. هغې د دې ښار ښکلي جوماتونه او ميوزيمونه وليدل.

د دولما باچې په شاهي ماڼۍ کې د سلطان ليدو ته ورغله او د هغه مېرمن سلطانه يې وليدله. پاچا له سلطان جهان سره په فارسي خبرې کولې او بيا يې خپلې مېرمنې ته په ترکي ترجمه کولې.

کله چې سلطان له هغه ځايه ولاړه، نو سلطانې ورته وويل چې بورقه دې لرې کړه. هغې چې بورقه لرې کړه نو سلطانې په مخ ښکل کړه خبرې په انگرېزي پيل شوې او د سلطانې لور له انگرېزي ترکي ته ژباړلې.

له ترکيې د روانېدو پر وخت سلطان هغې ته د ترکيې تر ټولو لوی اعزاز د ورکولو اعلان وکړو. سلطان جهان له انگرېزانو نه اجازه

په همدې وخت کې د هغه د سردارجلال خان په کور کې يوه ځوانه خدمتګاره خوښه شوه. يوه ورځ چې سردارجلال خان په کور کې لويه مېلمستيا کړې وه، د هغه د زوی او د دوست محمد خان تر منځ د دغې نجلۍ پر سر خبرې ورانې شوې. د جلال خان زوی وربانديې د غشي ګوزار وکړ. دوست محمد خان هم سمدلاسه خپل خنجر راواخيست او د هغه پر وجود يې ومنډلو. د ځوان له مړينې سره هغه ته اندازه وشوه چې دی له لوی خطر سره مخامخ شوی دی. د خپل مربي زوی يې په لوی لاس وواژه. دا ډېره د شرم خبره وه او په پښتنو کې د مرګ بدل مرګ وي. مخکې له دې چې د جلال خان خلک يې ونيسي، ده هم هغه وخت راټوپ کړل. پر خپل اس سپور شو او له هغه ځايه يې پښې سپکې کړې.

خو په دې تېښته کې هغه ټول وخت په دې وېره کې و چې د جلال خان خلک ورپسې دي. دا سيمه د هغوی لپاره نوې نه وه. په هرکلي کې هغوی خلک پېژندل. د دې سيمې د لوړو او ژورو نه هغوی خبر وو او د دوست محمد خان لپاره د پټېدو ځای نه و. ده ته لاره هم معلومه نه وه. خو دومره خبر و چې د ډيلي په جنوب ختيز کې ۱۰۰ مېله لرې و. لمر ته په کتو ده اندازه لګوله چې کومې خوا ته د اس مخ وګرځوي. دی تر شپږ ساعته پورې په منډه و او اس يې د يوې شېبې لپاره هم دمې ته نه ابله کاوه. نتيجه يې دا شوه چې په يوه ځای کې د ده وفاداره اس راپرېوتو او ساه يې ورکړه. د دوست محمد لپاره دا يو لوی ګوزار و. ده فکر وکړ چې خدای پاک ورته سزا ورکوي. خو اوس دې بېرته نشو ګرځېدای. همدا و چې ده په پښو مزل پيل کړی. ډيلي ته ۳۰ مېله لا پاتې وو چې دی د کرنال سيمې ته ورسېد. ببر سر او لوږې تندې وهلی و. وچې شونډې او په بدحال دوست محمد په

وغوښتله نو هغوی ورته وویل. له بریتانیا پرته بل څوک هغې ته د اعزاز ورکولو حق نه لري. د ترکیې سلطان په دې خبره سخت په قهر شو. خو تر هغه یې لوی سوغات ورته ورانديې کړ او دا د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم هغه وښته و چې دوی ډېر په عقیدت سنبال کړی و. سلطان جهان په دې عقیدوي تحفه دومره خوشاله وه چې یو وزیر ته یې دا وروسپارلو چې د یوې شیښې لپاره به یې هم له ځانه نه لرې کوي. دا وښته په بهوپال کې ډېر په عقیدت یوه ماڼۍ کې کېښودل شو او د میلادالنبي پر موقع به خلکو ته ښودل کېده.

له ترکیې څخه سلطان جهان هنګري او ورپسې د اټالیې ځو ښارونو ته ولاړه او په فلورېنس کې وه چې د نصرالله لیک ورته راورسېدو چې په بهوپال کې د طاعون وبا ګډه شوې ده.

هغې خپل نور سفرونه پای ته ورسول او سمدستي د مصر د سکندریې له لارې په سمندري بېړۍ کې بمبۍ ته روانه شوه. په مصر کې هغې جامع الازهر ته هم ښې ډېرې پیسې ورکړې.

په بهوپال کې د طاعون پر وخت د ورځې ۱۵۰ کسان مړه کېدل او ښېر میاشتې وروسته چې سلطان جهان بېرته راوګرځېده نو ډېر خلک دې وبا خوړلي وو.

په ۱۹۱۱ کې سلطان جهان د ډېلي دربار ته ورغله چې د پنځم جورج او د ملکې مېري د هند د سفر پر مهال جوړ شوی و. هم په دې کال د ټول هند د ښځو د تعلیم د اصلاحاتو په اړه یو کنفرانس جوړ شوی و چې سلطان جهان یې مشري کوله. د هغې وینا (تقریر) د هغه وخت د یوه تاریخي سند ارزښت لري. هغې د تعلیم او تحقیق لپاره د ډېرو پروژو سرپرستي وکړه. په دوی کې د مولانا شبلي نعماني له خوا د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د ژوند په باب د نومیالي

کتاب سیرت النبي لیکل او چاپول هم شامل و. د انګرېزانو له خوا هغه د علیګړ پوهنتون لومړی چانسلره وټاکل شوه. له دې وروسته خپله پوهنتون هم دا د دوو دورو لپاره پر دې ځای وټاکله. د یوې مسلمانې او پښتنې ښځې لپاره دا یو ډېر لوی بریالیتوب و.

سلطان جهان د تعلیم په اړه ډېره خواشیني وه. پخپلو یادښتونو کې لیکي:

"زما لپاره دا ډېره د غم او ناارامۍ خبره ده چې زما د ملک بهوپال د شپږ لکه شپېته زره نهه سوه او شپېته وګړو (۶۶۰۹۶۰) کې یو تن هم داسې نشته چې د پوهنتون سبق یې ویلي وي. دا له دې حقیقت سره سره چې زما د مور د حکومت په دوره کې هر هغه کس ته مالي مرسته ورکول کېده چې له لومړیو زده کړو وروسته یې تعلیم جاري ساتلو.

په خپله په ښار کې د لومړۍ زده کړو لپاره ښوونځي شته خو ځلوېښت کسان به پیدا نه کړې چې لسم یې ویلي وي

په ۱۹۱۱ کې د یورپ له سفره وروسته دې په هند کې د ښځو هرې لویې غونډې کې ګډون کاوه. په دې وخت کې د هغې دریځ دا و چې د ښځو لپاره د پردې ضرورت نشته او دا چې د غریبو او بې وزلو ښځو حالت ښه کولو لپاره کار پکار دی. په ۱۹۲۸ م کال کې هغه په خپله له پردې راووتله او خلکو په لومړي ځل اویا کلنه سپین سرې نواب سلطان جهان ولیدله.

په ۱۹۱۲ کې میمونه سلطان او حمیدالله د ښځې او مېړه په توګه ګډ ژوند پیل کړ او د دولس کلو په عمر کې میمونه د یوې ماشومې مور شوه، چې عابده سلطان ونومول شوه. وروسته دا ماشومه د

بهوپال د وروستۍ وارثې په توګه د ګوهر تاج په نوم د دې نوابۍ بې واکه واکمنه شوه.

د سلطان جهان مشر زوی به زیاتره وخت په خپلو مځکو او ښکار بوخت و. ده د نوابۍ شوق نه لرلو. خو عبیدالله په ډاګه د مور مخالفت پیل کړ او خپلو وربرونو (د نصرالله زامنو) او کشر ورور حمیدالله ته به په قهر و. سلطان جهان د خپل زوی د مخالفت تر شا د جلال اباد د پښتنو لاس لیدو. د عبیدالله او نصرالله مېرمنې خویندې وې او دوی به ځان ډېر متمدن او له نورو اوچت ګڼلو. دوی به د خپلې یور مېمونه سلطان په کړو وړو او د هغې په ژبه اعتراض کولو. مېمونې به تل له پېښوره خپل خپلوان بهوپال ته وربلل. په دوی کې به ډېرو خپله جامه اغوستله چې ګېډۍ پرتوګ او لوی چیندار کمیس و.

جلال آبادي مېرمنو به د دوی په لیدو ملنډې وهلې او دوی ته به یې ګهاګرا پلټن (د ګګرو اغوستونکې ډله) ویله.

د هند په مسلمانانو کې یو دود دی چې کله یو ماشوم د څلورکالو څلور میاشتو او څلورو ورځو شي، نو د ده لپاره د "بسم الله" مراسم ترسره کوي. ماشوم ته ښکلې جامې اغوستل کېږي او خپل خپلوان ورته راغواړي. بیا هغه څوک چې ماشوم ته د قرآن د لوست د نده ورکړې شوې وي، له ماشوم سره کښېني او د بسم الله الرحمن الرحیم په ویلو سره دیني زده کړې پیل شي. په دې موقع ماشوم ته په خوله کې خواږه ورکول کېږي او نژدې خپلوان ورته تحفې او پیسې هم ورکوي.

د بهوپال وروستۍ وارثه عابده سلطان په خپل کتاب کې لیکي: "په ۱۹۱۸م کال کې د جنوري پر لومړۍ نېټه زما د بسم الله مراسم وشو".

عابده سلطان د خپلې نيا سلطان جهان په کور کې لويه شوې وه او هم هغې ورته د قرآن او د هغه لفظي ترجمه ورزده کړې وه. دا زده کړې د ماشومې عابدې لپاره سختې وې. ځکه هغه به سهار د ملا بانګ سره راپاڅېدله. د لمانځه وروسته به نيا ورته سبق ښودلو او که غلطي به يې وکړه او يا سبق به يې نه ويلو نو سلطان جهان به په سوکانو وهله.

د بهوپال د واکمنې په توګه د سلطان جهان دربار به په انګړ کې لګېدو. هلته به سلطان جهان په يوه سپين توشک، ګدۍ يا درۍ په مځکه کښېناستله. په يو شمېر نورو صندوقونو کې به يې کاغذونه ايښي وو. ددې خواوشا به عريضه کوونکي، منشيان، او مېلمانه ناست او ولاړ وو. عابده سلطان لا د اتو کالو نه وه چې قرآن يې له لفظي ترجمې سره حفظ کړی و.

سلطان جهان د خپلې لمسۍ په دې کاميابۍ تر ځلوښتو ورځو پورې په بهوپال کې د نشرح جشن اعلان کړ. خو د واکمنۍ مشرانو نګيندو له دې هر څه ځان لرې وساتلو. په سرکاري مانۍ کې به هر ماښام ښځې راټولېدې او سندرې به يې ويلې. اخر سلطان جهان خپلو نګيندو ته د سبق ورکولو فيصله وکړه. يوه ورځ يې دوی ټول خپل کور ته وروبلل او کله چې مېلمانه په انګړ کې راغونډ شول، نو سلطان جهان د ډولکي په درز راپاڅېده. په دواړو لاسونو کې يې دسمالونه ونيول او له يوې مخې يې د پښتنو اتڼ پيل کړ. د واکمنې په دې کار سره د هغې ټولو مېلمنو هم ځان ورګډ کړلو اوس نو د جلال آبادي مېرمنو لپاره بې له دې بله هېڅ لاره نه وه چې اتڼ وکړي. سره له دې چې جلال آباديان په خپله هم پښتانه وو. دوی به د پېښور او سېدونکو ته کهاري (ترخه) ويل. دوی نه غوښتل چې واکمنه ترې

خپه شي. نو د لاسونو په وهلو په دې اتڼ کې ورګډې شوې. د عابده سلطان لپاره د هغې ترونو او خپل پلار په بېلو بېلو ورځو د نکريزو تالونه ورواستول. په ۱۹۲۱ کې تر يوه ښکلي تمبو لاندې د نهو وړو کو جينکو په بدرګه مېلمنو ته راغله چې په کې د عابدې دوې خويندې ساجده او رابعه هم شاملې وې. سلطان جهان له ټولو مېلمنو سره پر مخکه ناسته وه. د خپلې لمسۍ پر قابليت يې يو تقرير وکړ ټولو د الله اکبر نعره پورته کړه او بيا عابدې سلطان په مصرى لهجې د قرآن تلاوت پيل کړ. سلطان جهان په خپلې ماڼۍ کې د جينکو ښوونځى پرانيستى و چې په کې ددې لمسۍ له نورو سره يو ځاى د نوې زمانې زده کړې پيل کړې.

په ۱۹۱۴ کې د لومړۍ نړیوالې جګړې له پیل سره سم د بریتانیا حکومت د هند له لویې وچې نه د پوځیانو برتې کول پیل کړل. د هند له ټولو راجه ګانو او نوابانو دا هیله کېده چې دوی به خپل ټول وسایل انګریزانو ته ورکوي. د مسلمانو ریاستونو لپاره دا یو ډېر سخت کار و. ځکه چې په دې جنګ کې د انګرېزانو مخالف جرمني له ترکیې سره اتحاد کړی و. بهوپال د انګرېزانو پلوي نوابي ګڼل کېده. خو سلطان جهان د ترکیې د حکومت په پلوي مجبوره وه. ځکه د هغې د حج کولو پر مهال ترکي عسکرو د هغې ټوله کورنۍ ژغورلې وه.

په علي ګړ پوهنتون کې مسلمانو محصلینو د ترکیې په چارو کې په ډاګه احساساتي تقریرونه او بحثونه کول. په خپله په ترکیې کې د عثماني دورې د بیا راژوندي کولو لپاره خلکو د هند پر مسلمانانو لویه تکیه کوله. د هند مسلمانانو د مغول سلطنت له ړنګېدو وروسته ترکیې ته سترګې نیولې وې او غوښتل یې چې هلته د مسلمانانو یو غښتلی اسلامي دولت جوړشي.

حمید الله له خپلو ملګرو سره د ترکیې خلافت د پاڅون لپاره هلې ځلې کولې.

انګرېزانو پر دې وخت سلطان جهان ته مرموز پیغامونه ورلېږل چې په حمید الله دې نظر ساتي. سلطان جهان د بهوپالي عسکرو یوه ډله هغوی ته په دې شرط ورکړه چې دوی به د ترکانو پر ضد نه جنګېږي. هغې درې لکه او درویشت زره روپۍ هم انګرېزانو ته ورکړې. په ۱۹۱۵ کې جګړې زور اخیستی و. د هغې زوی عبید الله د پوځي قومندان په توګه عدن ته لاړ. خو ډېر ژر ناروغه شو او بېرته یې

راواستولو. حمیدالله له سبق وروسته په بهوپال کې د خپلې مور د مشر وزیر دنده پر غاړه واخیسته. هغه د علیګړ نه خپل ملګري راوغوښتل او په بهوپال کې یې په بېلا بېلو حکومتي کارونو بوخت کړل. په دې کار د بهوپال خلک هم ناراضه وو. ځکه دوی د بهوپال په کلتور نه وو خبر.

په بهوپال کې اوس هر چا له انګرېزانو څخه د خپلواکۍ اخیستلو خبره کوله. په ۱۹۲۴ کې د سلطان جهان زوی جنرال عبیدالله د سرطان په ناروغۍ مړ شو. د هغې مشر زوی نصرالله د شکرې په ناروغۍ اخته و او د خپل ورور له مړینې څو میاشتې وروسته دی هم مړ شو. د نوابۍ لپاره د حمیدالله چانس برابر و خو ها خوا د نصرالله زوی حبیب الله هم د خپلې نیا د ځای ناستي په توګه او د جلال آبادیانو په ملاتړ د بهوپال نوابي غوښتله.

سلطان جهان په دې وخت کې د خپل زوی حمیدالله لپاره یو ځل بیا د خپلو خپلوانو له مخالفت سره مخامخ شوه. د نصرالله له مړینې لس ورځې وروسته یې د انګرېزانو پاچا، خارجه وزیر او استازي ته لیکونه واستول او د اسلامي قانون له مخې یې د حمیدالله د ځای ناستي د حق خبره وکړه. بلخوا حبیب الله هم له انګرېزانو سره رابطه ټینګه کړې وه. انګرېز استازي د سلطان جهان دعوا په قانوني اساس رد کړه. نو هغه دومره په قهر شوه چې سمدلاسه یې انګلستان ته د سفر نیت وکړ.

په ۱۹۲۵ کې هغه یو وارې بیا انګلستان ته ورسېده. دلته هغې د بریتانوي حکومت له مهمو وزیرانو او پارلماني غړیو سره لیده کاته پیل کړل. حمیدالله په خپله هم د خپل حق لپاره هلې ځلې کولې. میمونه سلطان هر ځای له خپلې خوابنې سره مله وه او کوم ځای چې

به سلطان جهان په خپلې ماتې ګوډې انګرېزې خپل مطلب نشو بیانولی نو مېمونې به ورسره مرسته کوله.

په دې ورځو کې د انګلستان د پاچا جورج پنځمه لمسۍ اېلیزبېت وزېږېده. سلطان جهان د هغې مبارکۍ ته ورغله (وروسته دا شهزادګۍ د انګلستان ملکه شوه) او پاچا ته یې خپله عریضه واوروله. پاچا ورته په ځواب کې وویل چې دی هېڅ واک نه لري او هر څه چې د هند په باب کېږي هغه د برتانیې حکومت کوي. سلطان جهان له دې نه وه خبره چې د برتانیا د پارلمان ځینو غړیو په هند کې د انګرېز حکومت له استازیو پوښتنې کولې، چې دوی په کوم قانون د حبیب الله ملاتړ کوي. هغوی د حکومت هغو خلکو ته مشوره ورکړې وه چې د سلطان جهان په مخالفت ولاړ وو چې دغدر (د ازادۍ جګړه) پر مهال د بهوپال د شاهي کورنۍ رول مطالعه کړي. د انګرېزانو تر منځ قانوني لیکونه تلل راتلل او اخر په ۱۹۲۲ کې د حمیدالله حق ومنل شو.

سلطان جهان د زړه په مرض اخته وه او په لندن کې یې اعلان وکړ چې دا د خپل زوی حمیدالله خان په حق کې له نوابۍ لاس اخلي. انګرېزانو په خپل لیک کې ویلي وو چې له حمیدالله وروسته به د نصرالله او عبیدالله زامنو ته نوابي ورکول کېږي. ځکه حمیدالله درې لوڼه لرلې. خو سلطان جهان دا خبره نه منله. په دې دلیل چې په دې فیصله به د حمیدالله ژوند په خطر کې وي. دی به د ګدۍ لپاره د خپلو وربرونو له خوا ووژل شي. انګرېزانو دا دلیل ومانه. خو پوښتنه یې وکړه چې که د حمیدالله لور عابده سلطان د هغه وارثه شوه او وروسته د حمیدالله زوی وزېږېده بیا به څه کېږي؟ ځکه حمیدالله د برشو او مېمونه سلطان په دې وخت کې د پنځه ویشتو کلونو وه

سلطان جهان د خپلې لمسۍ د وراثت لپاره پر دې اساس جنګېده چې د بهوپال په ۱۰۷ کلن تاریخ کې څلورو ښځو ډېر په بریالیتوب حکومت کړی دی. نو عابده سلطان به هم ددې وړ وي چې د بهوپال واکمنه شي. دوه کاله وروسته د انګرېزانو او د حمیدالله ترمنځ په یوه تړون کې عابده سلطان د هغه ځای ناستې اعلان شوه. هغې ته د ګوهر تاج خطاب ورکړل شو.

د نواب حمیدالله دور په بهوپال کې ډېر لوی بدلونونه راوستل. دا بدلون په مراسمو او انتظام دواړو کې لیدل کېده. کابینه د دوو وزیرانو پرځای اوس په شلو وزیرانو ډکه وه. سلطان جهان به په دې خپه کېده او زوی ته به یې ویل چې ولې دومره پیسې لګوې. خدمتګارانو ته سپینه دریشي (یونیفارم) ورواغوستل شو. شاهي شان شوکت پیدا شو. د مالیې مستحاجري نظام معرفي شو.

سلطان جهان نور هېڅ نشو کولای هغې اوس هم د پنځو لکو روپیو مځکې او جاګیر لرلو او فیصله یې وکړه چې پر خپله مځکه به د عابده سلطان لپاره یوه ښکلې ماڼۍ جوړوي. دا ماڼۍ نورالصباح نومېږي او اوس یو هوټل دی.

سلطان جهان د ۷۲ کلونو په عمر کې د ګردې یا پښتورګو د عملیاتو وروسته په حق ورسېده.

په ۱۹۳۲ کې د هند نوابي ریاستونو او نورو راجه ګانو خپله یوه اتحادیه جوړه کړې وه او نواب حمیدالله درې واري ددې اتحادیې مشر ټاکل شوی و. په دې کلونو کې د هند د خپلواکۍ خبرو زور نیولی و او دا خبره یقیني وه چې انګرېزان به له هنده وځي او هند به وېشل کېږي. د کانګرس ګوند خپل استازي راجه ګانو ته ور واستول چې له هند سره د یوځای کېدو (الحاق) سند لاسلیک کړي او په

دې سيمه کې يو نامعلومه شخص و... پلې مزل يوه گټه دا ورته وکړه چې دی له خپلو پلټونکيو يو څه پټ شو چې په اس سپور د يوه لوړ دنگ پښتون په اړه يې له خلکو پوښتنې کولې. دوست محمد خان د خپل ژوند ځينې حالات په يوه کتابچه کې ليکلي دي چې روزنامچه نومېږي. دوست محمد په دې کې ليکي... له خپلو ناليدليو دښمنانو نه په تېښته ما داسې فکر کاوه چې دوی راپسې دي، تر ډېرو ورځو مې هېڅ نه وو خوړلي، جېب مې تش و او د ژوند هېڅ هيله مې نه لرله... زه د يوه نانبايي تنور مخې ته ودرېدم... زړه کې مې راگرځېدل چې يو څو ډوډۍ او هگۍ وتښتوم، ځکه نور مې د لوږې توان نه درلود. (په هندوستان کې اوس هم د لارې پر سر ډوډۍ او هگۍ د مسافرانو لپاره ارزانه خواړه دي.) په دې حال کې يو زوړ سړی چې لويه سپينه ږيره يې لرله د دوست محمد څنگ ته ودرېد... ده ته ځير شو او بيا يې ترې په ادبي فارسي پوښتنه وکړه: "ته د تيرا دوست محمد نه يې؟"

دوست محمد ساه نيولی ودرېد. فکر يې وکړ چې اخر دښمن ورپسې راورسېد. په يوه شېبه کې د هغه د ژوند ښايسته مانۍ راونړېده... بله چاره يې نه لرله، دې سپين ږيري ته يې وويل: "هو زه دوست محمد يم."

سپين ږيري ورته وويل: ته ما نه پېژنې زويه... زه د کاشغر ملا جمالي يم او په تيرا کې مې درته د قران کريم درس درکاوه. هغه وخت ته وړوکی هلک وې. د دوست محمد د خپل استاد په ليدو ببرته د ژوند هيله راوټوکېده... له هغه سره يې روغبړ وکړ... او کله چې ملاجمالي پوښتنه ترې وکړه چې له تيرا څنگه راووتلې. نو دوست محمد خان په لنډو خپله کيسه ورته وکړه. ملا جمالي هغه وخت له

رسمي توګه له هند سره يو ځای شي. په دې وخت کې مسلمانو رياستونو، حيدرآباد، جوناګړ او بهوپال له دې فيصلې نه ډډه وکړه.
نواب حميدالله نه غوښتل چې د بهوپال خپلواکي د ده له لاسه هند ته وسپارل شي. ده غوښتل چې دا کار د هغه لور عابده سلطان وکړي او دا يې تر څه ځايه ددې کار لپاره تياره کړې وه.
عابده سلطان په خپل کتاب کې ليکي:
''په دولسم اګست ۱۹۴۷ کې زما پلار په ډيلي کې له جناح، ماونټ بېټن، او د کانګرس له مشرانو سره تر خبرو اترو وروسته په الوتکه کې بهوپال ته راورسېدل. په زرګونه وګړي دده هرکلي ته ولاړ وو. دوی نارې وهلې چې 'پاکستان ته مه ځه.'
حميدالله هم هلته په خپله وينا کې خلکو ته ډاډ ورکړ چې 'دوی به نه مايوسه کېږي.'
له انګرېزانو د خپلواکۍ د ترلاسه کولو په هلو ځلو کې دې څو واري د کانګرس، مسلم ليګ او د انګرېزانو تر منځ په جرګو او مرکو بوخت و. او دوی ټولو په دې اعتماد لرلو. ده مهاتما ګاندهي په دې قانع کړی و چې د مسلم ليګ او محمد علي جناح وجود دې ومني او دا چې د هند مسلمانان ځان له پېژندګلوي او خپله خاوره غواړي. خو دبهوپال پولې له هرې خوا د هندوانو له اکثريتي سيمو سره نښتې دي او دلته ډېری اوسېدونکي هم هندوان دي. د هند او پاکستان وېش هم په دې اساس کېدو چې د ډېرکي هندوانو سيمې به له هند سره او ډېرکی مسلمانو سيمې به له پاکستان سره شاملېږي. حميدالله په دې پوهېدو چې د پاکستان له جوړېدو وروسته به بهوپال ځان ته پاتې وي.

په ۱۹۴۷ م کال کې حمید الله په کراچۍ کې یو لوی کور ځان له په بیه واخیست او "بهوپال هاوس" نوم یې ورله ورکړ. په دې کې د استوګنې انتظام هم وشو او د جناح له خوا هغه ته داسې پېغامونه استول کېده چې که دی راغی، نو کېدای شي د هغه ځای ناستې به وټاکل شي او یا به هم د ختیز پاکستان چې اوس بنګله دېش دی د هغه والي مقرر شي. خو په ۱۹۴۸ م کال کې د جناح له مړینې وروسته د پاکستان سیاسي فضا بدله شوه. اخوا د هند حکومت هم زور لګولی و چې نواب حمید الله دې په بهوپال کې پاتې شي. اخر په ۱۹۴۹ م کال کې دا خپلواکه ریاست لکه د نورو سلګونو ریاستونو غوندې د هند برخه وګرځېده.

په ۲۰۰۲ م کې د مۍ پر دولسمه نېټه د کراچۍ په ډان نومي ورځپاڼه کې یو وړوکی خبر چاپ شو چې "د بهوپال د پخواني ریاست وارثه شهزادګۍ عابده سلطان د شنبې په سهار د ۸۹ کلونو په عمر کې وفات شوه. دا د پاکستان د پخواني ډیپلومات شهریارخان مور وه او په ۱۹۴۲ م کال کې لومړۍ مسلمانه پیلوټه ښځه وه. نومورې د هاکۍ، پولو او د ټېنیس لوبغاړې او د هند ښځو د سکواش اتله پاتې شوه وه."

عابده سلطان د بهوپال د نواب ځای ناستي حمید الله خان او د میمونه سلطان مشره لور وه. چې په ۱۹۱۳ کې په شاهي ماڼۍ کې وزېږېده او سمدلاسه د نواب سلطان جهان بېګم په غېږ کې ولوېدله. تر څو چې هغه ژوندۍ وه د عابده سلطان پالنه او روزنه یې کوله. عابدې په وړوکي عمر کې له خپلې نیا د قرآن لوست له اردو ترجمې سره زده کړل پیل کړل او په غلطي کولو به د خپلې نیا له خوا وهل کېدله.

عابده سلطان پخپل کتاب کې لیکي: "د اس سپرلي او ښښه ويشتل زموږ ټولو ماشومانو لپاره يو لازمي کار و. راته ويل کېدل به چې هر يو پښتون بايد ښه ښه ويشتونکی وي."

عابدې ته په خپله د بهوپال د واکمنې سلطان جهان له خوا ډېر ښه پام کېده. هغه ځکه چې دا د خپل پلار نواب حميدالله خان ځای نيوونکې وه. د يولس کلونو په عمر کې هغې د قرآن لوست پای ته ورساوه. نو د هغې د نشرح جشن ولمانځل شو. په ټول بهوپال کې هغه مهال ددې د لمانځلو ذکر تر ډېرې مودې د خلکو په خوله کې و. په ۱۹۲۲ م کال کې چې کله ددې پلار حميدالله خان په لندن کې په رسمي توګه نواب اعلان کړل شو. نو عابده هغه وخت له خپلې مور او خويندو سره يو ځای وه او بهوپال ته بېرته په راتګ چې اورګاډی ښار ته رانژدې شو نو دا په ستر کښېنول شوه. د عابدې لپاره دا يو عجيبه حالت و. هغې خپل ټول ماشومتوب په لوبو او منډو کې تېر کړی و. د يوې عادي مېرمنې غوندې ژوند کول هغې ته ګران و. خو څو مياشتې وروسته دا د کورواييي د نواب سرور علي خان ته په نکاح کړل شوه. هغه د اورکزيو له فيروزخېلو څخه و. راتلونکي پنځه کاله هغې خپل رسمي تعليم او زده کړې پوره کړې او کله چې د ۱۷ کالو شوه نو د پلار له کوره رخصت شوه او په کورواييي کې يې ژوند پيل کړ.

د سرورعلي خان او عابدې خوی خصلت او ژوند له يوه بله سره ډېر په توپير کې و. عابدې د اس ځغاسته، بايسکل، پولو، لوبې او ښکار خوښول او د هغې د خاوند شطرنج او تاش لوبه خوښه وه. دی د ساړه طبعيت خاوند و او په کور کې د اوسېدو او مطالعې شوقين وو او هر وخت به يې بدني لوبې نه خوښېدې. نتيجه دا شوه چې د دوی تر منځ شخړې کېدې. عابدې يو څو مياشتې ورسره تېرې کړې او

ببرته د پلار کور ته راغله. هغې په خپل کتاب کې د خپل واده کړې ژوند د ناکامۍ په پر خپلې غاړې اخیستې ده.

یو کال وروسته دا د یوه ماشوم مور شوه چې شهریارخان ونومېدو. بیا عابدې په خپله سرورعلي خان ته اجازه ورکړه چې بل واده دې وکړي. خو په خپله یې تر مرګه له هغه طلاق وانه خیست او نه یې بل واده وکړ. عابده د خپل پلار له خوا د بهوپال مشره وزیره وټاکل شوه او په ۱۹۳۷ م کال کې له خپل درې کلن ماشوم زوی، مور پلار او خویندو سره یوځای د انګلستان د پاچا څلورم جورج د تاجپوشۍ مراسمو کې د ګډون لپاره ولاړه.

عابدې سلطان له خپل پلار سره د مشرې وزیرې په توګه سرکاري کارونه سرته رسول او د خپل زوی شهریارخان د تربیې او تعلیم سره سره یې د الوتکې چلولو، ښکار او لوبو کې ځان له مصروفیت موندلی و. په ۱۹۴۲م کال کې د هند او پاکستان د وېش معامله په ځینو ځایونو کې د خونړیو جګړو او بلواوو سبب ګرځېدلې وه.

په دې حالاتو کې عابدې خپل زوی انګلستان ته بوتللو او هلته یې په ښوونځي کې داخل کړ. په دې کال د هغې پلار د افتاب بېګم نومې نجلۍ سره دویم واده وکړ، چې له عابدې سره په ښوونځي کې وه. مېمونه سلطان او د عابدې نورو خویندو دا خبره په صبر سره وزغمله. تر یوه حده عابده سلطان هم ددې واده مخالفه نه وه خو حمیدالله دوی ټولو ته امر کړی و چې افتاب بېګم ته به هره ورځ سلام کولو ته حاضرېږي. د عابدې لپاره دا خبره د منلو وړ نه وه. دا هسې هم ډېره سرټمبه او سرکشه ښځه وه او پلار ورته ډېر ګران و. په دې خبره د هغې زړه ځنې مات شو او له بهوپاله مایوسه شوه. دلته ورته ژوند عبث ښکاره شو.

په ۱۹۴۹ کال کې د هغې پلار د خپل علاج لپاره په انګلستان کې و. عابدې خپل کالي پتري راټول کړل او تر ټولو نژدې خدمتګارې ته يې وروسپارل او دا يې بمبۍ ته ورواستوله. څو ورځې وروسته دا په خپله هم بمبۍ ته ور ورسېده. هلته يې د سکواش په اتلوليو کې برخه واخيسته او بيا په بېړۍ کې کښېناسته او د هند خاوره يې پرېښوده. دې په خپلې ماڼۍ کې نوکران. موټرې. اسونه او د کور هرڅه همدغسې پرېښودل او تر ډېرو ورځو څوک خبر نه وو چې دا به بيا نه راځي. څو ورځې وروسته يې په انګلستان کې يو جيپ واخيستو او د سړک له لارې اروپا، ترکيې او له ايرانه پاکستان ته ولاړه. هغه مهال د دې زوی شهريارخان په کېمبريج پوهنتون کې سبق ويلو

د کراچۍ په ملير سيمه کې هغې ځان له ځمکه واخيستله او خپل کور يې پرې جوړ کړ، چې تر ډېرې مودې پورې نامکمله پاتې و او برېښنا په کې نه وه. هغې خپل کالي خرڅول او شهريار ته يې د سبق لپاره پيسې وراستولې. ځکه د هغه د تعليم لپاره لا پخوا د بهوپال سرکاري وظيفه بنده شوې وه. د هغې په وتلو سره نواب حميدالله خان ورسره ټول اړيکې شلولي وو. د هغې د ځمکو ګټه هم وربانديې بنده شوه او د نورالصباح ماڼۍ سرکاري شوه.

عابدې سلطان اته کاله ډېر په خوارۍ ژوند تېر کړ خو له پلاره يې چېرې هم پيسې ونه غوښتلې. يو وارې د دې په کور کې غلا هم وشوه او يو څه کالي پتري چې ورسره وو هغه هم ترې ولاړل. دا په خپل کتاب کې ليکي:

''يو ازې زما رښتيني ملګرې زما کور ته راتلل ځکه زما کور ته له کراچۍ ښاره د نيم ساعت لاره وه. زما په کور کې د خدمت لپاره کله

ناکله بنګالیان راتلل. دوی تاوده زړونه او خوشاله روح لرلو. کله به د هند مهاجر راتلل چې ډېر با ادبه او ډېر بې اعتباره وو. کله به پښتانه راتلل چې ډېر مودبه نه خو پتمن وو او پنجابیانو به کار ډېر کولو خو پتمن نه وو"

په ۱۹۲۰ کې عابده سلطان د خپلې خور ساجده سلطان د لیدو لپاره ډیلي ته ورغله. ساجده د پټوډي په پښتون نواب منصورعلي خان واده وه. په دې وخت د هغې مور مېمونه سلطان ورته ټېلیفون وکړ چې پلار یې سخت ناروغه دی. دا له خپلې خور سره یو ځای په الوتکه کې بهوپال ته ورسېده.

عابده سلطان لیکي:

"مورږ د خپل پلار د شخصي ساتونکي له خوا په پوره ودرول شو او راته یې وویل چې هېڅوک اجازه نه لري له دې ځایه وړاندې ولاړ شي. مورږ دواړه خویندې سختې خواشینې بهر ولاړو. بیا بهر په باغ کې کېښناستو زمورږ مور له ډاکټرانو سره جنجال کاوه. دوی ډېر مودبه وو او ویل یې. "چې په مناسب وخت به اجازه ورکړي، چې نواب صېب ووینې" که څه هم بهوپال په ۱۹۴۹ کې له هند سره یو ځای شوی و خو تر ۱۹۷۰ پورې ځینو نوابانو خپل رسمي حثیت هم هغسې ساتلی و. دوی څه خاص امتیازات نه لرل او تش په نوم پاتې وو. زیاتره یې د خپلو مځکو او باغونو په آمدن ژوند تېراوه.

په بله ورځ عابدې او د هغې خور ته اجازه ورکړل شوه چې خپل پلار نواب حمیدالله خان ووینې. عابدې دولس کاله خپل پلار نه وو لیدلی او په وروستي ځل خپل پلار ورته په یو سخت لیک کې خبرتیا ورکړې وه چې دا د بهوپال په مځکو او جایداد کې هېڅ برخه نه لري.

اوس د هغه سترګې کمزورې شوې وې او کله چې یې د خپلې لور غږ واورېدو نو له خوشالۍ یې غبرګه پرانیستله او عابده یې تر غاړې وته. څو ورځې وروسته د ۱۹۶۰ کال پر ۴ فروري نواب حمید الله خان له دې فاني دنیا سترګې پټې کړې.

د هغه د جنازې د مراسمو لپاره عابدې هلې ځلې وکړې او غوښتل یې چې پلار یې په پوره سرکاري درناوي سره خاورو ته وسپارل شي او د بهوپال د یوویشتو توپو سلامي ورته وکړي. دې ته اطلاع ورکړل شوه چې اوس په بهوپال کې توپې نشته. دلته بیا د عابدې سرټمبګي کار وکړو. هغې فیصله وکړه چې مقصد د بارودو د ډز نه دی. په څه سترو یې ۲۱ د بارودو ګولې تیارې کړې او د جنازې پر وخت یې وار په وار خلاصولې. د نواب حمید الله مړی یې د بهوپال په شاهي جنډه (بیرغ) کې خاورو ته وسپارلو.

د عابدې کورنۍ اوس پر هغې فشار راوړ چې دا دې پاتې شي او د پلار میراث دې سمبال کړي. د هغې میرې افتاب بېګم هم ورته په ټینګار وویل خو عابدې اوس په بهوپال کې ځان پردی احساساوه. په ۱۹۸۰ م کال کې دا یو واري بیا د خپلې ناروغې مور میمونه سلطان لیدو ته له پاکستانه هند ته ولاړه. په بمبۍ کې ورته وویل شو چې اوس به دا په پولیس تانه کې خپل نوم لیکي. ځکه چې دا د پاکستان اوسېدونکې ده. دې هلته د اورګاډي د درېیمې درجې ټکټ واخیست او څلورویشت ساعته یې د نورو خلکو په شان سفر وکړ او په ګاډي کې نیمه ویښه، نیمه ویده کله چې بهوپال ته ورسېده. دې ځان دومره په بدحال احساساوه چې خپل پېټی یې پر سر کېښوده او د ټیکسي موندلو په لټه کې شوه. دې فکر کاوه چې څوک به یې ونه پېژني او نه یې غوښتل چې څوک یې وپېژني. په دې وخت کې یو پولیس واله

ددې لوري ته راغی او ورته يې ویل: "ته بیا حضور يې (بیا په بهوپال کې خورکۍ یا مورکۍ په مانا کارېږي. خو عابده سلطان ته به ټولو "بیا" ویل.)

کله چې دې ورته ځان وروپېژندلو نو نور خلک ترې هم راټول شول او اخر په یو ټانګه (ګاډي) کې يې تر خپل منزل ورسوله.

هلته په شاهي مانۍ کې عابدې خپله مور او کشره خور رابعه سلطان ډېر نااسوده لیدل. هر څه په زړېدو وو. باغونه يې شاړ او د لوبو میدان له وښو او وحشي بوټو ډک وو. کله کله به یو چا سر ورته ښکاره کړو. ځینې پخواني خدمتګاران لا پاتې وو. میمونه سلطان ډېر شاهي خویونه لرل او لکه د یوې صبرناکې مېرمنې هرڅه يې په خاموشي زغمل، خو د ژوند وروستۍ شېبې يې په یوازیتوب تېرې شوې. د بهوپال د نوابۍ وروستۍ وارثې عابدې سلطان چې کله پاکستان ته کډه وکړه، نو په لومړیو څو کلونو کې يې ځان له نویو حالاتو سره برابرولو.

په ۱۹۵۸ م کال کې دا په برازیل او وروسته په چیلي هېواد کې سفیره شوه. ددې د کورنۍ په درناوي د پاکستان هر حکومت ورته ارزښت ورکولو. د ۱۹۲۰ په لسیزه کې هغې د واکمن جنرال ایوب خان پر ضد د مسلم لیګ له خوا په هغو انتخاباتو کې کمپاین وچلولو چې مشره يې د محمدعلي جناح خور فاطمه جناح وه. په عملي سیاست کې دا په لومړي ځل فعاله شوه، خو د دوی ګوند رایې ونه ګټلې او ورسره ددې سیاسي ژوند هم پای ته ورسېد. کله چې ددې زوی شهریارخان د خارجه وزارت لخوا مسلکي ډیپلوماټ وټاکل شو او واده يې وکړ، نو عابدې ټولنیزو کارونو ته لاس واچولو. په خپل

کور کې يې د ملېر د غريبو او بې وزلو ماشومانو لپاره د زده کړې اسانتياوې برابرې کړې او تر مرګه په ليک لوست بوخته وه

×××

غوښتنو سره سم له خپلې سیمې هندوستان ته ورغلی و او په ډیلي کې یې یوه اسلامي مدرسه پرانستې وه. دی یې له ځانه سره خپل کورته بوتلو ډوډۍ یې ورله ورکړه او کله چې د هغه ساه صورت پر ځای شو. نو دوست محمد ورته خپل مشکل وویلو. دی نږدې یو کال د ملا جمالي په کور کې پاتې شو.

ملا جمالي د بدخشان اوسېدونکی و او په ډیلي کې د ده د مدرسې او دیني تعلیم له کبله ډېرو خلکو پېژندلو. هغه وخت مغول پاچا اورنګزیب د اتیا کالو و او زیاتره به د ملک په جنوب کې په جنګونو بوخت و. په جنوب کې د ده زامنو پخپلو کې ناندرۍ اېرې وهلې چې د پلار تر مړینې وروسته به یې څوک پر تخت کښېني. اورنګزیب ته وفاداره د ده والیان چې افغان، ترک، هند او د مرکزي اسیا اوسېدونکي وو د خپل قدرت د ساتلو لپاره ځان - ځان ته لګیا وو. مغول سلطنت په ټوټې کېدو و او هر چا غوښتل چې په راتلونکي کې د واکدارۍ لپاره سمه لاره غوره کړي. په دې وخت کې اروپايي ملکونو هم اندازه لګولې وه چې هند یو مهم ځای دی او د دوی له خوا هم تجارتي او سفارتي ډلې پرله پسې راروانې وې چې خپلې اغېزې قوي کړي. انګرېز خو د ایسټ انډیا کمپنۍ دفترونه په مدراس او بنګال کې بنه پاخه جوړ کړي وو. د حیدرآباد او اودهه غوندې نوابیو کې یې پوځ هم ساتلی و. په دې وخت کې دوست محمد خان چې د تیرا غرونو کې یې ژوند کړی و. د هند د هغه وخت کلتور ته سترګې وازې نیولې وې. دغه وخت ډیلی د بېلا بېلو قامونو او کلتورونو په ورګډېدو ډېر پرمختللی ښار و. هر ډول هنرمندان، لیکوال، شاعران او عالمان دلته راټول وو. خو دوست محمد خان ددغه یوه کال په موده کې له ملا جمالي نه ډېره زده کړه وکړه. له ژبې پرته یې د

په بهوپال کې هغه پښتانه چې د دوست محمد خان په وخت کې ورغلي وو. د استوګنې ځايونه يې نه لرل زياتره په کې مېشتي خېل وو او لکه چې د پښتنو دود دی. په پردېس کې هر وخت چې يوه ډله ځان له ځای جوړ کړي نو نور خپلوان هم ورپسې ځي. د بهوپال د ويالو او تالابونو په غاړه يو بوټی کېږي چې مېږرو ته ورته وايي او دې ته "بروو" وايي. دې لومړنيو پښتنو چې کله ځان ته جونګړې او کوډلې جوړولې نو د "بروو" بوټي به يې پرې کول او په چتونو به يې غوړول. له همدې کبله ورته د هندوستان خلکو "برووکټ" يا (بروو پرېکوونکي) ويل. په شلمه پېړۍ کې هم د دې پښتنو اولادونو د کرکټ او هاکي لوبو کې نوم وګاټه او يو په کې منصورعلي خان چې د پټوډي نواب او د هند د کرکټ نامتو لوبغاړی و او بل د هاکي اتل اسلم شېرخان و. کله چې دوست محمد خان په بهوپال کې ځای پر ځای شو. نو له تيرا يې خپل خپلوان راوبلل. د ده ورونه چې شېرمحمد، الف محمد، شاه محمد، مير احمد او عاقل نومېده. د عاقل نه علاوه نور ټول په بېلا بېلو جګړو کې ووژل شول. له دې وروسته په لومړۍ جوپه کې نږدې پنځوس تنه راغلل چې زياتره مېرازي خېل وو. ورپسې مېشتي خېل او فيروزخېل ټبرونه ورغلل. له بهوپاله لرې د کوروايي نوابي دلبرخان جوړه کړې وه. چې فيروزخېل اورکزي وو دی په ۱۲۷۰ کې په کندهار کې زېږېدلی و او له دوست محمد سره يو ځای په ډېرو جنګونو کې لکه د بنو ملګريو جنګېده.

په ۱۷۱۷ کې مغول پاچا فرخ سېرور له د بهوپال سره نږدې ۳۰ پرګنې ورکړې. تر دې وړاندې دلبرخان دلته ۱۷۱۳ کې يوه د ختو کلا جوړه کړې وه. دا سيمه په ۳۲۸ مربع کيلومېتره غزېدلې ده او په



په بهوپال کې د وروستي نواب ماڼۍ حمید منزل



میمونه سلطان د خپلو لوڼو سره



د بوتير طالع زرخان



مفتي عبدالرزاق په منځ کې



موتي مسجد



په ووکنګ کې د بریتانیا لومړی جومات



د بهوپال ځینې پښتانه د استاد عبدالخالق رشید سره چې په منځ
چوکۍ کې ناست دی



لیکواله په اسلام نګر کې

۱۹۰۱ کې هلته د یارلس نیم زره خلک مېشت وو. دلېرخان په ۱۷۲۰ کې د جې پور د راجه تر قوماندې لاندې د کوټه په جنګ کې برخه واخیسته او هم په دې کال له حیدرآباد سره وجنګېده. خو دوه کاله وروسته دوست محمدخان دی له خپلو زامنو سره یوځای یوې مېلمستیا ته بېراسیه ته وربللو او له خپل زوی سره یو ځای یې ووژلو. دا معلومه نه ده چې له دوست محمدخان سره یې څه وخت او څنګه مخالفت پیدا شو.

دلېرخان د مغول پاچا محمدشاه له خوا شاهي نښان او د امیرالدوله لقب اخیستی و او د پنځو زرو عسکرو منصب دار و. دده مېرمن شاه درې بي بي د یوه بل سردار نصرالله خان خور وه. دده زوی عزت خان د پلار پر جاګیر وارث شو او څه وخت چې دوست محمد له مرهټه وو سره په جنګ اخته و. نو دی د پښتنو د دښمنۍ له کبله د خپل دښمن له دښمن یعني مرهټو سره لاسونه یو کړل. په ۱۷۶۱ کال چې احمدشاه ابدالي پر هندوستان حمله وکړه او د پاني پت په میدان کې د مرهټه وو او افغان پوځونه یو بل ته مخامخ شول، نو عزت خان د مرهټه وو په صف کې ولاړ و. هم په دې جنګ کې د ده خپل ماما د احمدشاه ابدالي په پوځ کې جنګېده. په سختې جګړې کې عزت خان ټپي شو او هم دغه ماما وپېژانده او د درملنې لپاره یې له مېدانه خپلې خیمې ته یووړ. کله چې یې ټپونه جوړ شول. نو د احمدشاه ابدالي خدمت ته یې حاضر کړ. ده ورته د لقب او د جاګیر نه علاوه د یوې لویې جنګي ډلګۍ قومانده وسپارله. دی کورواییي ته د یوه معزز او مېړني په توګه ببرته ولاړ. خو لږه موده وروسته مړ شو مرهټه وو دده غداري هېره نه کړه او څه موده وروسته د عزت خان زوی نواب حرمت خان د پلار ځای ناستی شو. نو ډېر ژر د مرهټه وو

لاس ته ورغی او د پلار په بدل کي يې ونيولو او تر درې کاله د هغوی بندي و. په بندي خانه کې شکنجه شو او ډېره بده وضعه ورسره وشوه. مرهټو غوښتل چې دده خزانه او پرگنې ترې واخلي. اخر دی مجبوره شو او يو شمېر کلي يې مرهټه وو ته وسپارل. له دې علاوه ده درې لکه روپۍ د خوشي کېدو په بدل کې ورته ومنلې. له بنده له خلاصېدو سره سم هغه د نويو ملگريو په لټه کې شو او انگرېزانو ته يې مخ واړولو. ده داسې فکر کاوه چې انگرېزان به د مرهټه وو له ماتې وروسته هغه کلي بېرته ورته ورکړي. خو هغوی دغه مځکې په خپل واک کې وساتلې. د حرمت خان دوه زامن مظفرخان او نجف خان يو په بل پسې نوابان شول. خو د دواړو له مړينې وروسته دوی نارينه اولادونه نه لرل چې نواب شي. په دې وخت کې د بسوده نواب په دې گدۍ دعوا وکړه. خو اخر دا دعوا د نجف خان لمسي منورعلي خان وگټله. د منور مور د نجف خان لور وه. د منورخان هم زامن نه وو او دغسې دده له مړينې وروسته نوابي دده ورور يعقوب علي خان ته ورکړل شوه.

يعقوب علي خان له خپلې کونډې ورېنداري عمرالنساء سره واده وکړ. ده يو زوی او يوه لور لرل. دی هم دد پرشو کالو په عمر مړ شو. نو دده ماشوم زوی سرورعلي خان د څلوروکالو په عمر کې نواب اعلان شو. انگرېزانو د هغه د سرپرست په توگه يوه شورا وټاکله چې مشره يې د سرورعلي خان مور عمرالنساء وه. دا د "سرکاراما" په نامه پېژندل کېده او د بهوپال د نوابې سلطان جهان ملگرې وه. نو د هغې خبره به يې ډېره منله. هغې د واکمنې په توگه په کوروايي کې د غريبو خلکو لپاره اداري جوړې کړې. يوه کليوال بانک به کروندگرو ته د تخم د وېشلو او بې له سوده پورونه ورکول چې مځکې وکري. د

سلطان جهان په وينا نواب سرورعلي خان او دده خويندې د نوي زماني تعليم او زده کړو لپاره ښوونځيو او کالجونو ته واستول شول. په خپله سرورخان د اندور په ډالي کالج او بيا د اجمير په مايو کالج کې د زده کړو لپاره ولېږل شو. په ۱۹۲۱ کې سرورخان د لندن په سينډ هرسټ کې پوځي زده کړو لپاره ولاړ او په ۱۹۲۳ کې نواب شو.

په ۱۹۲۲ کې ده د بهوپال له شهزادګۍ عابده سلطان سره واده وکړ. د نکاح نامې يو شرط دا و چې د سرورخان مشر زوی به د بهوپال نواب وي. په ۱۹۳۴ کې د ده زوی شهريارخان وزيږېد. خو دا څرګنده وه چې عابده سلطان او نواب سرورعلي خان يو ځای ژوند نشو کولای. دوی بېل شول او څه موده وروسته سرورخان دويم او بيا دريم واده وکړ. له دريېمې ښځې دده زوی ظفرعلي خان دده له مړينې وروسته نواب شو. نواب سرورعلي خان د هندوانو له ټيټې طبقې سره ډېره خواخوږي او زړه سوی لاره او په خپل حکومت کې يې دوی ته ډېره ونډه ورکړې وه. د کوروايي په ولسي جرګه کې يې ددې طبقې ډېر خلک راوستل. ده د زور ودونو او جهېز پر ضد هم ډېرې هلې ځلې وکړې. دی په ۱۹۸۲ کې مړشو.

کله چې عابده سلطان له سرورعلي خانه بېله شوه، نو هغه ته يې وويل چې بل واده دې وکړي. نواب سرور د "وای" د نواب له لور عايشه سره واده وکړ. دوی درې اولادونه لرل چې قيصر زمان، ظفرعلي خان او منورعلي خان نومېدل.

قيصرزمان اوس په بهوپال کې يو شخصي ښوونځی پرانيستی دی او لور يې د شهريارخان په دويم زوی علي واده ده او په لاهور کې ژوند تېروي.

د دليرخان يو بل زوی محمد احسن الله خان د بسوده نومي ځای نواب وټاکل شو. د نواب حرمت خان يو بل زوی نجف خان هم د خپل ورور له مړينې وروسته نواب شو. خو ده صوفي طبعيت درلود او د قادريه طريقې منونکی و. زيات وخت به يې په عبادت کې تېرولو. دده مېرمن لاډلي بېګم د محمدګړ د نواب احمد قلي خان لور وه.

د نجف درې زامن په ماشومتوب کې مړه شول او چې دی مړ شو. نو دده خور کرامت الزماني بېګم نوابه شوه او د بسوده دا دواړه نوابۍ يعنی کوروايي او بسوده يو ځای شول. د ميمونه سلطان دويمه خور ساجده سلطان د پټوډي په نواب افتخارعلي خان واده شوه چې د پښتنو يوه بله نوابي وه. دی د هند د کرکټ لوبغاړی و. د ساجده سلطان زوی منصورعلي خان هم د پلار په شان د کرکټ لوبه غوره کړه او يو وخت کې د هند ستوری و. ده د هندي فلمونو له بنګالۍ اداکارې شرميلا ټېګور سره واده وکړ. د منصورعلي خان درې اولادونه دي چې دوه يې اوس د هند د بالي ووډ په فلمونو کې د سيف علي خان او سوها علي خان په نامه پېژندل کېږي.

د ده يوه لور چې سباعلي خان نومېږي اوس په بهوپال کې د هغو لسګونو زيارتونو او جوماتونو متولي ټاکل شوې ده چې په تېرو دريو سوو کلونو کې پښتنو جوړکړي وو. د "اوقاف شاهي" په نوم اداره په بهوپال کې ټول مذهبي ځايونه اداره کوي. له دې علاوه سکندر بېګم چې په مکه کې د حاجيانو لپاره کوم رباطونه (وړيا اوسېدو ځايونه) جوړکړي وو دا د هغې مسوليت هم په غاړه لري. د دې خبرې څه مخالفت هم کېږي. ځکه چې د ساجده سلطان کورنۍ له بهوپاله وتلې ګڼل کېږي او ځينې خلک په دې باور دي چې اوس د نوابانو او دراجه ګانو دور ختم شوی دی. لکه چې د بهوپال نورې

څانګې (شعبې) د حکومت له خوا اداره کېږي. په کار ده چې د نوابۍ کورنۍ اوقاف هم له حکومت سره وي. په دې اړه راته شهریارخان د یوه ډیپلوماټ ځواب راکړ او هغه دا چې "څه چې په هندوستان کې پاتې دي هغه په ما پورې اړه نه لري. زما مور بې له هغې هم د پلار په میراث چې دعوا کړې وه ورته هېڅ تر لاسه نشول. زه خپل بسه ژوند لرم."

د اورکزو یوه بله کورنۍ د جلال خېلو وه چې له دوست محمد خانه ډېر وړاندې د لوهارې په سیمه کې اوسېدل. دا سیمه د هند د اترپردېش ولایت سهارن پور ولسوالۍ (ضلعې) ته نژدې ده، چې د دیوبند مدرسه په کې ده.

د سردار جلال خان څو پښتونه د مځکه والو په توګه د لوهارې خواوشا مېشت وو. د سردارجلال خان د پلارنوم میرحضر خان و او د دولسمې پېړۍ په نیمایي کې د مغول پاچا اورنګزېب پر وخت د دې سیمې مځکه وال و. جلال خان ته دده د خدمتونو په بدل کې منصب ورکړی شوی و او دی د "بهیم" نومې ولسوالۍ تانېه دار و. د جلال آباد د د نوابۍ بنسټ هم ده اېښی و. دی په ۱۷۱۷ کې مړ شو او هم هلته په جلال آباد کې ښخ شو. د جلال خان له کړوسیو یو احمدعلي خان و چې د دولس کلونو په عمر کې د بهوپال نوابې سکندربېګم د خپلې کونډې مور او وړې خور سره خپلې ماڼۍ کې وساتل. وروسته احمدعلي له سلطان بېګم سره واده وکړ.

دا سیمه هم بهوپال ته نژدې ده او په ۷۸ مربع کیلومیتره غزېدلې ده. دلته د بارکزیو د قبیلې خلکو خپله نوابي جوړه کړه. بنایي د ۱۷۹۴ راهیسې په کې پښتانه مځکه وال وو او په ۱۸۰۷ کې نواب حیدرمحمدخان واکمن و. وروسته دده زوی عبدالکریم او لمسی عبدالرحیم خان نوابان وو. د هند تر وېش پورې (۱۹۴۷) عبدالغني او دده زوی ابوبکر غني دلته نوابان وو. بیا وروستی نواب آصف محمدخان په ۱۹۷۰ کې له دې ځایه کډه وکړه او بمبۍ ته ولاړ. د هند او پاکستان تر وېش وروسته د بهوپال ډېرو پښتنو په تېره بیا هغه چې د اورکزیو یا درانیانو له ټبره وو پاکستان ته کډه وکړه. دوی زیاتره په کراچۍ کې ژوند کاوه. د امراولدوله (د سلطان جهان خاوند) کړوسی انورکمال د پاکستان له خوا په بنګله دېش او بیا په مصر کې سفیر پاتې شو.

د دوست محمدخان د کورنۍ دوه نور مهم غړي غضنفر محمدخان او اسلم محمدخان د پاکستان په پوځ کې د ډګرمن چوکۍ ته ورسېدل. د امرالدوله لمسۍ منورجهان د جوناګړ نواب ته واده شوه.

د مېمونه سلطان خورزه شهزادګۍ فرحت سلطان د پاکستان د هوایي ځواک مشر (ایېرمارشل) نورخان ته واده شوه.

د بهو پال په پوځ کې به تل پښتانه زیات وو او د نوابۍ د ساتنې په لاره کې دغو پښتنو ډېر لوی رول لوبولی دی. د مېمونه سلطان ورور سلطان عزیز خان ته به له پېښوره ځینې خلک راتلل او ده به ورته کار روزګار ورکاوه.

په دوی کې ډېر خلک چې ژوند یې ښه شو تر اوسه په بهوپال کې اوسېږي. دوی به د واده لپاره جینکۍ او هلکان د پښتنو په کورونو

کې لټول. خو لکه چې په نورو ځايونو کې هم کېږي. له لومړي کول نه دويم ته ژبه کډه نه کوي او په تېره بيا چې په چاپېريال کې پښتو نه وي. دوی پښتو لـه لاسه ورکړې ده. د نوابي کورنۍ زياترو خلکو خپلې مانۍ يا په کرايه ورکړې او يا يې هوټلونه ترې جوړ کړي دي.

د عابدې سلطان کشره خور رابعه اوس هم په بهوپال کې ده او پخپل کور کې يې يو ښوونځی جوړ کړی دی.

نور يا په بمبۍ او يا هم په ډيلي کې اوسېږي. ځينو پخوانيو پوځيانو يا ښار او کليو کې مځکې اخيستې دي کورونه يې جوړ کړي او هم هلته اوسېږي. په داسې کورنيو کې يو څه پښتو پاتې ده او د هغې علت دا دی چې دوی په پاکستان کې د خپلو خپلوانو سره رابطه لري او کله چې د هند او پاکستان تر منځ پولې پرانستې وي. نو دوی د يوه بل کره تګ راتګ هم کوي. نوې واده شوې مېرمنې له ځانه سره پښتو راوړي او دغسې ژبه يو څه تازه شي. نورې په اردو کې د پښتو ټکي راګډوي. يو ځای د ډوډۍ پر وخت ښځو په خپلو کې خبرې کولې لکه اينې، مړې، مړا، خو چپ شه. زه. څه مې تر غوږو شول.

د بهوپال يو اغېزمن شخصيت مفتي عبدالرزاق نومېږي. دده کورنۍ نژدې سل کاله پخوا د صوبه سرحد (پښتونخوا) له مردانه هند ته تللې وه. ده هم هلته ديني زده کړې کړي دي. دده يوه زوی د مدهيه پردېش له يوې حوضې (حلقې) نه د لوک سبها (پارلمان) غړی دی. د بهوپال په ښار کې د ده يوه لويه مدرسه ده او دلته له څلورو سوو زيات ماشومان د ديني زده کړو لپاره ورځي خو دا مدرسه د سپين ږيرو پښتنو لپاره د راټولېدو يو مرکز هم دی. د مدرسې د انتظام لپاره څه ناڅه ۸۰ کسان کار کوي. په دوی کې د مفتي صېب د کورغړي هم شامل دي. ده راته وويل: ''موږ هره ورځ دوه نيمو سوو

بېلابېلو مذهبونو کلتورونو او د دوی د اخلاقو مطالعه او مشاهده کوله او ځان به يې ورته برابرولو. دی به مشاعرو ته ورتللو. د لوبو او اس ځغاستې په سياليو کې به يې ونډه اخيستله او د نظام الدين په درګاه کې به يې قوالي اورېدله.

خو له دې هرڅه سره له هغه خپل هدف هېر نه وو... د مغول په پوځ کې نوکري اوس هم دده ارمان وو. ملا جمالي هڅه وکړه چې دوست محمدخان ديني زده کړو ته پام وکړي او د ده غوندې عالم شي، خو دوست محمد خان دا نه غوښتل، نو اخر ملا جمالي ورته يو اس او پېنځه اشرفۍ ورکړې چې ځان په مغول پوځ کې ورګډ کړي. هغه وخت د اورنګزېب د وسله تون مشر مير فضل الله و.

په ۱۷۰۴ کې دوست محمد خان خپل لومړي مسلکي جنګ ته حاضر شو. دا جنګ په ګواليار کې د بنديل کنډ سيمه کې و. ددې ځای والي تردي بېګ له پاچا بغاوت کړی و او هم د ده د مخنيوي لپاره د مغول پوځ ورواستول شو. دوست محمد په لومړۍ دسته کې شامل و، خو ډېر ژر مغول پوځ په ګونډو شو. د تردي بېګ قومندان کاشکوخان نومېده او سخت جنګيالی سړی و... دوست محمدخان د توري ګوزارونه وخوړل او ټپي هم شو، چې ويې ليدل د ده پوځ په بدحال کې دی، نو فيصله يې وکړه قومندان ته ځان ورسوي. ده خپله نېزه راواخيسته او په هغه هاتي يې يرغل وکړ چې کاشکوخان پرې سپور و، خو د هغه ساتونکيو او هاتيوان ورباندې ګوزارونه وکړل دوست محمدخان په دې هم بې حوصلې نه شو او خپلې حملې يې جاري وساتلې. دی په خپلې روزنامچې کې کاږي:

يو وخت هاتي دی په خپل خرطم کې ونيولو خو ده ترې ځان خلاص کړ او د خرطم په مټ لوړ ورو خوت او په يو ګوزار يې کاشکوخان ووژلو.

خلکو تـه دوه وختـه ډوډۍ ورکـوو ''ډوډۍ خـوړونکي زیـاتره هغـه ماشومان وو چې د سبق لپاره هلته ورتلل. په مدرسه کې دننه يو دالان کې ښځې ناستې وې. دوی وريجې او نوره غله پاکوله. د مفتي صېب يو زوم هره ورځ د پخولو لپاره غوښه او ترکاري په خپله راوړله.

لـه ښـاره شـل کيلـوميټره لويـديځ لـوري تـه پـه يـو کلـي کـې مفتـي عبدالرزاق يوه مدرسه جوړه کړې وه او هم هلتـه يـې يوه ورځ د خپلـې کورنۍ غړي او ځينې نور خلک مېلمانه کړل. هر چا تـه يـې د صحبت بلنـه ورکـړې وه. د ښـځو لپـاره د مدرسـې پـه دويـم پـوړ کـې يـوه برنـډه غوره شوې وه. د مفتي صېب لـور راتـه وويـل: مـوږ دې ډوډۍ تـه 'وړه مړۍ' وايو. بيا د چېلۍ (اوزې) د غوښې لويې لويې ټوټې چې پـه يـوه غټ دېګ کـې پخـې شـوې وې راوړل شـوې. پـه ښـوروا کـې پاسـتې (چپاتي) واړه شو. په غټو غټو خانکونو کې يې دا ډوډۍ راوړه او موږ په ډلو کې کېښناستو او ومو خوړله. د ښاريو ځو ښځې نـاارامې وې. دوی په لاسونو ډوډۍ نشوی خوړلای او قاشوغې يې غوښتې.

په بهوپال کې د دوست محمد خان کلا چې فتح ګړ نومېږي اوس هم شته. خو ددې له يوه دېوال سره سرې وړې جنډۍ رپېدلې او دا ددې نښه وه چې هندو مذهبي سخت ګيرو دلتـه د رام د مندر کېدو دعوه لري.

د دوسـت محمـد خان د اسـتوګنې ځـای ډېـر سـاده و. ددې کـوټې او دالانونه هم هغسې دي لکه چې په تيرا کې د ځينو خانانو کورونه وي.

د نوابې کورنۍ هغـه ښـکلې مـانۍ چې صدر منزل، مـوتي محل او تـاج نـومېږي اوس پـه کـې هوټلونـه جـوړ دي. د بهوپـال د نـامتو جهيـل (تالاب) خواوشا ټولې ودانۍ اوس د سېلانيانو لپاره په کرايه ورکول کېږي.

د دوست محمد خان د کور په برنډه کې د تېرو سلو کلونو تصويرونه ځوړند وو. په دوی کې د وروستي نواب حميدالله خان او دده د مشرې لور عابدې سلطان عکسونه ډېر وو. عابدې له ماشومتوبه پوځي لباس اغوستلو او په اس به يې ډېره سپرلي کوله. مور سره مل د بونير يو پښتون طالع زرخان چې دعوا يې کوله دی له سلو کلو زيات عمر لري او د بهوپال په پوځ کې عسکر پاتې شوی و. د عابده سلطان يو عکس ته يې ګوته ونيوله او ويې ويل: "مور چې کله پوځي پرېډ کاوه او نواب حميدالله خان به کتنې ته راتلو نو عابده سلطان به ورسره مله وه."

د رای سين ولسوالی د بهوپال له ښاره ۲۰ کلومېټره د لويديځ پر خوا ده. د يوې غونډۍ له پاسه د رای سين د مشهورې کلا کنډوالې له سړکه ښکارېدې. دا کلا په شپاړسمه پېړۍ کې شېرشاه سوري له يوې محاصرې وروسته نيولې وه. دوه سوه کاله وروسته هم دغه کلا دوست محمد خان نيولې وه. ددې غونډۍ په شاوخوا کليو کې د پښتنو مېنې دي. په دوی کې يو څو نومونه داسې دي: سيلواني، اوچيره، باوليه، خان دېره، ښنتره، دهنورا، بهولايي، بورلايي، څارنپور او داسې نور....

په باوليه کې محمد ايوب او د هغه ورونه په خپل هغه لوی کور کې ژوند کوي چې د ده پلار پنځوس کاله پخوا جوړ کړی و او تقريبا د ټول کلي مځکې د دوی خپلې دي. دده د پلار نوم شمس احمد و او دی له سواته بهوپال ته تللی و. هغه وخت په خان دېره (کهنډېره) کې دوه نور پښتانه ورونه د عابدحسين او ماجد حسين په نومونو اوسېدل. دوی به د بهوپال د ځنګلونو لرګي پرېکول. چارتراش به يې ترې جوړول، او د کورونو او فرنيچر جوړولو لپاره به يې پر خلکو پلورل. شمس احمد

هغه وخت د دوی دا لرګي په یوه تېرک کې د هند بېلابېلو برخو ته رسول. د لارۍ (تېرک) چلولو کار ده پخوا هم کاوه، خو اوس یې په کې ډېره ګټه وکړه. وروسته ده هم د لرګیو کار پیل کړ او په باولیه کې یې مځکه واخیستله.

د شمس دوه مېرمنې وې. یوه عایشه بي بي نومېده چې ما ورسره په باولیه کې ولیدل او زما له تګه یو کال وروسته وفات شوه. دویمه خوشاله بي بي ده، تردې دمه چې زه دا لیکنه کوم لا ژوندۍ ده.

خوشاله بي بي د ایوب احمد مور ده او په وړوکي عمر کې له سواته راواده شوه او د بهوپال په دې وړوکي کلي کې یې ژوند پیل کړ. په باولیه کې د ټیلیفون او د برېښنا اسانتیاوې شته خو د کلي سړک پوخ نه دی.

زما په پوښتنه ایوب احمد راته وویل: دا کلی همدغسې ښه دی. موږ سړک نه غواړو.

اوس د کروندې لپاره دوی ټرېکټر او سره کاروي او تېرکال یوازې د غنم حاصل (پالېز) یې دوه زره کیلوګرامه و. د غنمو سربېره دوی چڼې او دال او په لږه مځکه ترکاري هم کري. دوی بزګران هم لري چې زیاتره هندوان دي. د دوی مېرمنې هم د کور په کارونو کې بوختې وي. هر یوه خدمتګار ته دوی څلورسوه روپۍ تنخواه ورکوي. په واده ښادۍ کې ورته نوې جامې او پیزار اخلي. د پښتنو له هر کور سره جوخته یوه حجره ضرور جوړه وي. سړي ماښام په حجره کې راټولېږي او څراغ (لالټین) په رڼا کې کیسې کوي، یا راډیو اوري. د دې کلي پښتانه په اسلامي اصولو سخت ولاړ دي. کله چې یې ښځې د یوه بل کور ته ځي نو پړوني یې پر سروي. خو چې له بهوپال ښاره بهر وځي نو بیا چادري (برقعې) اغوندي. ځینو سپین ږیرو د نوابۍ وخت په ښه

ټکو کې يادا وو خو د کلي ځوانانو يې په هغه اړه هېڅ معلومات نه لرل. داسې ځوانان هم شته چې په پښتو خبرې کوي او په دې وياړي چې دوی پښتانه دي او نور بيا د اسلاميت او د مسلمانۍ او د مسلمانانو د يووالي په خبره ټينګ دي.

په بهوپال کې د کونړ او سېدونکي يوه وکيل وحيد خان د صديق حسن ذکر په ښه ټکيو کې وکړ. صديق حسن د شاهجهان بېګم دويم خاوند و او د انګرېزانو پر ضد يې تبليغ کاوه. وحيد خان په دې نظر و چې صديق حسن يو لوستی سړی و او د اسلام د دين لپاره يې له يوه لوی قدرت سره ډغره وهله.

که څه هم په اوسني هند کې مسلمانان خپل ځان ډېر ترګوابن لاندې احساسوي، خو په بهوپال کې پښتانه د پېژندګلو لپاره د خپلې ژبې يا کلتور پر ځای تر اسلامي چتر لاندې خپل ځان زيات خوندي ګڼي.

په بهوپال کې زياتره پښتانه اوس د ځايي خلکو غوندې ژوند تېروي. دوی خپله ژبه هېره کړې ده. د نوي کول ځوانان اردو وايي خو لوستلای يې نه شي ځکه چې په هند کې رسمي ليکنې په ګورمکهي رسم الخط باندې کېږي. له پښتنو پرته (علاوه) چې دلته نور مسلمانان ژوند کوي په کړو وړو کې يې ډېر توپير نشته. د هندوستان له وېشه وروسته هغه هندو مهاجر چې د پاکستان له سند سوبې (ايالت) نه ورغلي وو، د دوی ګڼ شمېر په بهوپال کې ځای کړل شو.

ځيني پښتانه په دې خبره په تشويش کې دي چې په پاکستان او افغانستان کې د دوی د قام خلک په ترهګرۍ بدنامېږي. دوی هلته د امريکا او اروپايي ځواکونو په شتوالي هم خواشيني وو. په بهوپال کې ورته د يوه لږکي (اقليت) په توګه ژوند ګران نه دی خو کله کله د

خپلو مشرانو د وختونو او د هغه دور یادونه ضرور کوي. چې په دې خاوره یې حکومت کړی و.

## د دوست محمد روزنامچه

د سلطان جهان د نوابۍ پر وخت هر کال د اختر پر موقع د کورنۍ ټول غړي به په لوی تالار کې راټول شول او هغه وخت به د دوست محمد خان روزنامچه د هغه د اوسپنې له لويې پېټۍ راوايستل شوه او ټولو به لکه د تبرک وليدله. بيا به يې هم هغسې سنبال کښېوده. پر دې موقع به يې د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم وېښته مبارک هم ليدو چې ورته ترکي سلطان ډالۍ کړی و. عابدې سلطان په خپله دا دواړه شيان کال پر کال ليدل.

د دوست محمد روزنامچه د هغه ديوان (وزير) بيجي رام ورته په فارسي کې ليکلې وه. د نواب حميدالله د مړينې وروسته لکه چې د هغه نور شيان ورک شول د دې روزنامچې درک هم ونه لګېد.

کله چې شهريارخان د بهوپال د تاريخ ليکلو لپاره له خپلوانو سره رابطه وکړه، نو دا روزنامچه له هېچا سره نه وه. په ۱۹۲۲ م کال کې د هندوستان يوه اردو مجله "شعله حيات" د دې روزنامچې ژباړه په قسطونو کې چاپ کړه. عابده سلطان وايي: دا د اصل متن ژباړه ده.

شهريار خان راته وويل چې ده د مجلې له چلونکيو سره هم رابطه وکړه، خو دوی خبر نه وو چې اصل روزنامچه له چا سره وه. ان تر دې چې د هند په ملي آرشيف کې هم نشته. خو مهمه خبره داده چې د دې روزنامچې له مخې د قدسيې بېګم د زمانې راهيسې د بهوپال تاريخ ليکل شوی دی. شاهجهان بېګم په خپله هم د بهوپال د تاريخ د ليکلو پر وخت له دې روزنامچې څخه پېښې ليکلي دي.

## د بهوپال نوابان

دوست محمد خان (د نورخان زوی) ۱۷۰۵-۲۸

نواب یار محمد خان ۱۷۲۸-۴۳

فیض محمد خان (مامله بايي) ۱۷۴۴-۷۷

حیات محمد خان ۱۷۷۷-۱۸۰۷

غوث محمد خان ۱۸۰۷

وزیر محمد خان ۱۸۰۷-۱۶

نذر محمد خان ۱۸۱۶-۱۹

قدسیه بېگم ۱۸۱۹ - ۳۷

جهانگیر محمد خان ۱۸۳۷ - ۴۴

سکندر بېگم ۱۸۴۴ - ۶۸

شاه جهان بېگم ۱۸۶۸ - ۱۹۰۱

سلطان جهان بېگم ۱۹۰۱ - ۲۶

حمید الله خان ۱۹۲۶ - ۶۰

# ددوست محمد اولادونه

- يار محمد (نواب)
- سلطان محمد
- صدر محمد
- فاضل محمد

شجره یوویشت



یار محمد (نواب)
حسین محمد خان
فیض محمد (نواب)
سید محمد
حیات محمد (نواب)
یاسین محمد
غوث محمد (نواب)
تاج محمد
میان محمد خان
نجات خان
سردار بي بي
صاحب بېگم
وزیر بي بي
گوهر بېگم (نوابه)
لاډو بي بي
جومایوت بي بي
امانت بي بي
اهواز بي بي


جلال ابادي کورنی (لوهاري)
سردار جلال خان
محمد یار خان
دلاور علي خان
ایمان علي خان
حسن علي خان
منصور خان
محمد علي خان
ولایت علي خان
احمد علي (دنواب سلطان جهان خاوند)
چندابي
دوه لوڼه یې د نواب سلطان جهان په دوو مشرانو زامنو واده شوې

# کوروایی (نوابي)



## د میمونه سلطان کورنۍ



# اخځلیکونه

۱. د بهوپال بېګمات. شهريارخان
۲. د باغي شهزادګۍ يادونه. عابده سلطان ۲۰۰۵ م کال اکسفورډ يونيورسيټي پريس کراچي.
۳. د هندوستان طلايي کتاب. سر روپر ليت برج ۱۹۰۰
۴. انسايکلوپېډيا اېشياټيک. ۱۹۷۲ اېډورډ بال فور کوزمو خپرندويه ټولنه
۵. په بهوپال، ډيلي او لندن کې د د نوابې کورنۍ او نورو پښتنو او غېرپښتنو سره مرکې.
۶. مسلماني ښځې. اصلاحات او شاهي ساتنواله (Patronage) د بهوپال نواب سلطان جهان بېګم... سيوبان لومبرت-شاهي اېشيايي ټولنه هرلي روټ لاج ۲۰۰۲
۷. په هند کې زما سفرونه (۱۹۲۷) ګرېس تهامسن سي ټون ختيځ او لويديځ (مجله)

# مننه

ددې کتاب په جوړولو کې ما سره د پرو خلکو او ادارو مرسته کړې ده. د بي بي سي د اوناسیس نومې بورس چې د هند د سفر لګښت یې پوره کړ.
په جواهر لال نهرو پوهنتون کې د ژبې او ادبیاتو استاد عبدالخالق رشید ، هم ددې پوهنتون پروفیسر اخلاق احمد انصاري، د بهوپال مفتي عبدالرزاق، وکیل عبدالوحید ، محمد ایوب او په تېره بیا د نوابې کورنۍ شهریارخان چې د ارشیف درک یې راکړو.

د کتاب په ټایپ کې محمد قاسم خان مندوخېل، په کمپوز کې هېنداري- کتاب خپرولو صندوق او د پښتنې په ډیزاین کې میرویس میاخېل ډېر زیار ایستلی دی. زه د دوی ټولو د مرستې او لارښوونې مننه کوم.

د قومندان په وژنه د تردي بېګ پوځ وارخطا شو او د مغول پوځ ماتې په برې واوښته. اورنګزېب ته خبر ورکړى شو او ورسره د دوست محمد خان د مېړانې کيسه هم ډيلي ته ورسېده. ميرفضل الله هغه خپل دربار ته وروغوښت او تابيا يې وکړه چې اورنګزېب يې ووينې.

په ۱۷۰۵ کې اورنګزېب ۲۱ کاله د مرهټه وو سره له جنګونو وروسته بېرته ډيلي ته راغلی. دوست محمد خان اوس د ۳۳ کالو و. دی په خپله روزنامچه کې کاږي:

يوه ورځ دده لښکر د مغول باچا د معاينې لپاره اورنګ آباد ته وروغوښتل شو. دی ليکي چې که څه هم اورنګزېب پاچا ډېر زوړ او ستړی ښکارېده، ولې دده شخصيت داسې و، چې دی پرې اغېزمن شو. اورنګزېب پر ټولو عسکرو او د دوی پر قومندانانو يو ځغلنده نظر واچاوه او بيا يې سترګې پر دوست محمد خان ايسارې شوې. پر ده يې غږ وکړ: "اې ځوان روهيله راوړاندې شه او ما ته ځان حاضر کړه".

بيا ده فضل الله ته مخ ورواړاوه او ورته ويې ويل چې دا ځوان ښکلی، قوي او د اوچتې کورنۍ ښکاري. د دې خبرې تابيا يې وکړه چې دی ونازوي او د يوه ستر لښکر قومنداني ورته وسپاري. بيا پاچا دوه موټې اشرفۍ راواخيستې او د دوست محمد خان په لاس کې يې ورکړې. دوست محمد ليکي چې د پاچا په مهربانۍ دی ډېر تر اغېز لاندې راغی او ورته څرګنده يې کړه چې دی به ورته پتمن وي.

اورنګزېب پاچا له دې پېښې څه موده وروسته مړ شو او د اورنګزېب زامنو (اعظم شاه او بهادرشاه) ترمنځ د تخت پر سر جګړه پيل شوه. دواړو دوست محمد خان ته پيغامونه ورواستول چې د دوی په ملاتړ دې ودرېږي. خو دوست محمد خان ورته ځواب ورکړ چې ما ستاسو له

پلار سره د پت قسم خوړلی و او نشم کولای چې د هغه د یوه زوی پرضد ودرېږم. دی هغه مهال په مالوه کې د پوځ قومندان و. هرې خوا ته راجواړې جوړې شوې او د حکومت پوځ په څو برخو وېشل شوی و. په داسې حال کې له دوست محمدخان سره یوازې ۵۰ تنه پښتانه پاتې شول. د خان خانۍ په دې دور کې دوست محمدخان له خپلو ملګریو سره کله د یوه راجه او کله د بل نواب د واک ساتنې لپاره د هغوی په بلنه جنګ کاوه. دوی لکه د کرایې د ساتندویانو ډېرې جګړې وکړې او په بدل کې به دې نوابانو او راجه ګانو ښې ډېرې پیسې ورکولې.

د اورنګزېب له مړینې یو کال وروسته دوست محمد خان په مالوه کې ټولو خلکو پېژندلو. په دې وخت کې منګل ګړ راجپوت راجه انند سنګ چې د خپلو ګاونډیو راجه ګانو نه په وېره کې و دوست محمد ته یې د ساتندوی په توګه نوکري ورکړه. لږه موده تېره شوه چې راجه مړ شو. خو د هغه مور دوست محمدخان ته خواست وکړ چې د دوی د ساتنې لپاره دې ایسار شي.

په ۱۷۰۸ م کال کې رانۍ دوست محمدخان د ټولې راجواړې مختار وټاکلو چې دی به د رانۍ او د منګل ګړ د ریاست ساتنه کوي. په دې وخت کې دوست محمدخان د راجه د کورنۍ له یوې راجپوتې نجلۍ سره واده وکړ. هغه مسلمانه شوه او نوم یې فتح بي بي شو. دوست محمد نور ودونه هم کړي وو، خو فتح بي بي ورته ډېره ګرانه وه. دې مېرمنې له خپل خان سره ډېره شتمني د دوست محمد خان کور ته یووړه. فتح بي بي د بهوپال د مسلمان نوابۍ لومړۍ مېرمنه وه چې د حکومت په چارو کې یې مهم رول درلود. خو عجیبه خبره دا ده چې د نوابۍ تاریخ لیکونکیو د فتح بي بې په اړه هیڅ نه دي لیکلي

نور هغه خلک چې مسلمانان نه وو او د نوابي کورنۍ سره وو د هغوی په اړه هم څه نه دي ليکل شوي. په تېره هغه ځيني چې د ودونو له لارې يې کورنۍ ته ورداخل شوي وو له يامه غورزول شوي دي. په داسې تاريخونو کې د ميراث او د وارثانو ذکر ښه په تفصيل شوی دی.

فتح بي بي يو عامه ښځه نه وه. دا هوښياره. په زړه پورې او له ژونده ډکه وه. له دوست محمد سره به هر ځای پر اس سوره وه. هغه که به جګړه وه او يا هم په سيل وتل او ښکار کول وو

دوست محمد به پرې ډېر باور او اعتماد کاوه په راتلونکو څو کلونو کې له ده نه منګل ګړ پاتې شو او له هغه ځايه يې شاوخوا سيمو ته پوځ کشي کوله. خو ډېر ژر يې فيصله وکړه چې د ځان ځانۍ په دې دوره کې به دی د نورو لپاره تل جګړه نه کوي او ده ته د پښو لګولو يو ځای پکار وو. ده له بهوپاله ۲۲ کلوميتره لرې شمال لور ته د بيراسيه نومي ځای د مغولو له يوه نوابه په اجاره واخيست، چې کلنۍ اجاره يې ۳۰زره روپۍ وه.

دوست محمد دلته يوه وړوکې غونډې نوابي جوړه کړه. يو جومات او يوه کلا يې په کې جوړه کړه او د انتظام لپاره يې خپل بااعتباره افغانان په کې مقرر کړل. خو د ګجرات په يوه معرکه کې دی د خپلو پوځيانو له خوا مرهټه سردار ته وسپارل شو او هغه بندي کړ. فتح بي بي د هغه د راخوشي کولو لپاره ډېرې روپۍ مرهټه سردار ته ورکړې او دی يې راخوشی کړ، چې د سازشونو په دې دوره کې هغه په هېڅا هم باور نه کاوه او غوښتل يې چې خپل خپلوان له تيرا راوغواړي.

په ۱۷۱۲ م کې دوست محمد خان د خپل ټبر پنځوس کسان له تيرا نه راوبلل. په دې ډله کې دده پلار پنځه ورونه او معراج بي بي چې

اوس دده مېرمنه وه شامل وو. دا څرګنده نه ده چې هغه څنګه او څه وخت دوست محمد ته واده شوې وه. دا د بهوپال لومړي مېشت پښتانه وو. او په بېراسیه کې یې ځانونو ته استوګن ځایونه جوړ کړل. د دوی کورونه د ختیو وو او په نږدې ځنګل کې د یو بوټي چې "برو" نومېدو ځانګې به یې پرېکولې او د چت لپاره به یې کارول. ځایي خلکو به ورته بروکټ پټهان ویل. دوست محمد تر دې دمه له فتح بي بي سره په منګل ګړ کې اوسېدو. خو د هغه لومړۍ مېرمنه معراج بي بي د دوست محمد له نور ټبر سره په بېراسیه کې اوسېدله. د منګل رانۍ چې دوست محمد یې خپل زوی کړی و، د هغې څوک وارث پاتې نه و. نو د منګل ګړ ټوله خزانه او شتمني د دوست محمد لاس ته ولوېده. دوست محمد نه یوازې په جنګونو کې د مېړنتوب له امله بلکې پخپلې بې رحمۍ د شاوخوا زمینداراتو او د وړو پرګنو مشرانو په زړونو کې وېره اچولې وه. او هغه څوک چې د دوی په مقابله کې به یې ځان کمزوری ګڼو، ده ته یې سر ټیټ کړ. په دې وخت کې دوراها، سې هور، اچاور، اشتا او د شجال پور سیمې دده په کنټرول کې راغلې. د ځینو سیمو د رانیولو لپاره په جنګونو کې د ده دوه ورونه هم ووژل شول.

په ۱۷۱۵ کې د ده پلار نورمحمد خان مړ شو. دوست محمد د سیمې د هندوانو او په ټبره بیا د راجپوت قام سره خپل اړیکې هوار ساتل او له ځینو سره یې ملګرتیا هم کوله. د اوسني بهوپال حیثیت هغه وخت د یوه کلي وو او دا د ګېنور یوه برخه وه. د ګېنور شاوخوا هغه وخت د هندوانو دوه قامونه اوسېدل یو ګونډ او بل بهیل نومېده. دوی قبیلوي ژوند کاوه. په وړو وړو ډلو وېشلي او خپل مشر یې لرلو. په دوی کې تر ټولو زورور د نظام شاه په نوم واکمن و. ده ډېرې

ښځې لرلې خو کملاپتي يې د خپل وخت يوه ډېره ښايسته، هوښياره او ځيرکه ښځه وه. ځايي خلکو به په سندرو او متلونو کې ستايله. د عالم شاه په نوم د نظام شاه يو تربور د چين پور بارا د سيمې راجه وو. يا خو په کملاپتي مين وو او يا يې د ګټور واکمنې غوښتله نو يوه ورځ يې نظام شاه ته په ډوډۍ کې زهر ورکړو. د هغه له مړينې وروسته ده پر کملاپتي زور راوړ چې ورسره واده وکړي. د هغې لپاره يوازينۍ لاره چې د خپل خاوند د مړينې بدل هم واخلي او د عالم شاه له خطره ځان هم خلاص کړي، يو زورور سړی پيدا کول و او په دې سيمه کې له وړاندې د دوست محمد د مېړانې او د هغه د چلند نغاره غږېده. د راکهي د لمانځلو پر وخت کملاپتي د دوست محمد خان پر مړوند راکهي وتړله او دی يې ورور کړ. د هندوانو د راجپوت قام په دې لمانځلو کې خويندې د خپلو ورونو پر ښي مړوند يو زرين تار تړي. خوارېه ورله ورکوي. ورور پر دې موقع پيسې يا تحفه د هغې په لاس ابېدي. دا رسم د ورور او خور د يوه ابدي تړون نښه ګڼلی شي. کله کله به مېرمنو د خپل ناموس د ساتنې لپاره پردي سړي ته هم راکهي تړله.

کونډې کملاپتي په ډېره هوښيارۍ له دوست محمد خان دا ژمنه واخيسته چې د ورور په حثيت به د هغې د ناموس ساتنه کوي او د هغې د خاوند قاتل به هم وژني. ددې په بدل کې رانۍ ورله د يو لکو روپيو د ورکولو لوظ وکړ. دوست محمد خان له ژمنې سره سم عالم شاه ووژلو. خو کملاپتي يو لک روپۍ نه لرلې. هغې ورله پنځوس زره روپۍ پوره کړې او د نورو په بدل کې يې د بهوپال کلی وروسپارلو.

دا د دوست محمد د نوابۍ د پلازمېنې لومړۍ بنسټ و. کملاپتي ۱۰ کاله ښه په ارام ژوند وکړ. کله چې هغه په ۱۷۷۳م کال کې مړه

شوه، نو دوست محمد خان دا کلا او د دې تولـه شتمني تر خپل لاس لاندې راوستله. پـه دې وخت کې د کملاپتـي زوی نـوال شـاه وسـله پورته کړه او له دوست محمد سره په جنګ شو. خو د دوست محمد د ځواکونو له خوا ووژل شو.

اوس چې دوست محمد ته پراخه سیمه پیدا شوه نو هغه خپلې پښې ټینګې کړې او د یوه خپلواک حکمران پـه توګه د بهوپـال او شـاوخوا سیمو واکمن شو. پـه دغو شپـو ورځـو کـې د مغـول دربـار او مرهټـه وو تر منځ د واک پر سر جنګ روان و. نو دوست محمد خان پـه داسې حـال کې یو خوا مغـول دربـار تـه سوغـاتونه واستول او هغـوی تـه یـې خپلـه وفاداري څرګنده کړه، نو بل لور یې د مرهټه واکدار تـه مالیـه (چوت) چې د حاصل څلورمه برخه کېده ورکوله. خو مرهټه وو ته یې مالیـه پـه دې شرط ورکوله چې هغوی به دده چارو کې لاسوهنه نه کوي.

## اسلام نګر

پـه ۱۷۲۰ م کې بهوپـال د یـوه کلـي غونـدي و او دې کـې تقریبـا زرو کسانو ژوند کاوه. خو دوست محمد پـه اسلام نګر کـې اوسېده. ددې له لرغوني ماڼۍ سره جوخت هغه ځان له یوه ماڼۍ جوړه کړې وه. چې تر اوسه پاتې ده. بهوپال له دې ځایه ۱۵ میله جنوب ته دی.

د مرهټو او راجپوت سره پـه جنګ کـې دوست محمد خان هـېڅ ډول اصول نه منل. د اتلسمې پېړۍ پـه سر کـې د هنـدوانو پر خـاوره داسې ځان ځاني وه چې مسلمانان تر خپلو مینځو او هندوان تر خپلو مینځو پـه جنګ اخته وو. لـه ۱۷۱۲ م کال نه تر ۱۷۱۵ م پـورې دوست محمد د بهوپـال شـاوخوا څـو ځلـې د راجپوتـو سره وجنګېـدو. پـه پراسـون نومي ځای کې دا جنګ څـو ورځـې روان و. پـه دې کـې د هـولي ورځـې

شوي. دا هغه لمانځنې دي چې راجپوت هندوان پر يوه بل رنګ پاشي او د يوه بل کورونو ته ورځي. د راجپوتو مشر دوست محمد ته پيغام ورواستوو چې د دوی د مذهبي لمانځنو په وياړ دې څو ورځې جنګ بندي وکړي. دوست محمد ورسره دا خبره ومنله. خو دی پوهېدو چې د هولي په ورځو کې راجپوت نه يوازې لمانځنې کوي. دوی بنګ هم څښې او خپله وسله يې ابېنې وي. يوه شپه دوست محمد خپل يو جاسوس د ګداګر په لباس کې د راجپوت پوځي کېمپ ته ورواستوو. چې حال راوړي. هغه خبر راوړو چې راجپوت نشه دي. دوست محمد هم نور انتظار ونه باسلو او هم هغه شپه يې ورباندې چپاو وکړ او جنګ يې وګټلو. د بېراسيه نه شل کيلو ميټره لرې د جګديش پور کلی و او د يو بل راجپوت ډلې مشر نار اسنګ راوچوهان دوست ته د خبرو اترو پيغام ورواستوو چې د سولې تړون ورسره وکړي. دوست دا ورانديز ومنلو او له دواړو غاړو د ۱۲ کسانو په بدرګه دوست او چوهان په جګديش پور کې د تهال سيند په غاړه له يوه بل سره د ليدو فيصله وکړه. د روغې جوړې لپاره ددې غونډې کوربه دوست محمد و او په خپلې خېمې کې يې د ډوډۍ بندوبست ورته کړی و. له ډوډۍ وروسته دوی له کېږديو بهر راوتل او د هغه وخت له دود سره سم يې خپلو مېلمنو ته پان او عطر وړاندې کړل. دوست محمد خپل عسکر نژدې د ونو شا ته پټ درولي وو او د هغه په اشاره يې د تمبوانو مراندې پرې کړې او د راجپوت ټول کسان يې ووژل. دا وژنې دومره په وحشت شوې وې چې د نږدې وړوکي سيند اوبه د راجپوتو په وينو سرې شوې او وروسته د تهال پر ځای دا سيند د هلالي په نامه ونومول شو.

دوست محمد خان وروسته جګديش پور د اسلام نګر په نامه واړولو او ډېر ژر يې پکې يوه قلعه جوړه کړه. دا دبهوپال سلطنت

لومړی پلازمېنه وه او دغسې په ۱۷۲۳ م کې دوست محمد شپاړلس کاله وروسته د یوه ایله جاري او جنګیالي پرځای د یوه حکمران په توګه رااوچت شو.

په دې وخت کې د ده وفاداره فتح بي بي ورسره وه. د دې نوابی د انتظام کار پیل شو. د وخت رواج سره سم ټولې لیکنې به په فارسي ژبه کې کېدلې او له مغول درباره یې ځان ته د نواب نوم (خطاب) هم واخیست. په ۱۷۱۷ م کال کې هغه د نواب دلېر جنګ نوم ځان ته ګټلی و. خو لکه چې د پښتنو دود و دوست محمد چېرې هم د پلار او د مشر ورو په موجودګی کې دا نوم ځان ته کله هم نه کارولو. خو اخر د ورونو په ټینګار یې دا خطاب ځان ته غوره کړ.

یو ه ورځ فتح بي بي او دوست محمد خان د ښکار لپاره ځنګله ته ورغلي وو. څو ساعته په ګرمی کې د اس له ځغاستې ستړي شول او د بهوپال له سیند سره نږدې یې د ونو سیورې وموند او د دمې لپاره هلته ایسار شول. د دې ځای خاموشې کې دواړو ارام کاوه او د دوست محمد سترګې سره ورغلې، په خوب کې ګوري یو بزرګ ورته وایي په دې ځای به یوه کلا جوړوي. دی چې راپاڅېدو نو فتح بي بي ته یې خپل خوب بیان کړ، هغې سوګند ترې واخیست چې هرومرو به پر دې ځای کلا جوړوې.

دا د فتح ګړ د کلا بنا وه. د دې کلا لومړی تیږه د رای سین قاضي محمد معظم کېښوده چې وروسته د بهوپال مشر قاضي هم شو. دوست محمد، فتح بي بي او د بروکټ پښتنو پخپلو لاسونو دا کلا جوړه کړه او د بهوپال پخوانی کلایې ورسره یو ځای کړه. په دې کې شپږ دروازې وې چې د شپږو ورځو په نومونو وې. او هم په دې کلا کې د بهوپال لومړی جومات چې د دوه نیمو پوړو جومات یې ورته

وایه جوړکړل شو. (اوس د دوست محمد او فتح بي بي قبرونه څنګ په څنګ د بهوپال په فتح ګړ کلا کې جوړ دي).

د دوست محمد لومړی دیوان یانې مشر وزیر بیجي رام- د شجال پور یو هندو مشر و. په داسې وخت کې چې نظام د حیدرآباد او مرهټه یو پ خوا ته او مغول بلې خوا ته په خپلو کې سره په جنګ وو، نو دوست محمد ته د خپلې نوابۍ ساتل ګران کار وو. له عسکري پلوه مغول کمزوري وو. نظام او مرهټه دواړو د هند جنوب نیولی و او د مغول واک یې نه منلو. خو دوست محمد د کمزوري مغول واکدارانو مله کوله. په ۱۷۲۰ کې د نظام او مرهټه ګډ ځواکونه د بهوپال له لارې دکن ته تېرېده چې د دوست محمد ورور میراحمد له خپل ځواک سره په دې لښکر حمله وکړه. خو ماتې یې وخوړله او خپله هم ووژل شو. په داسې حال کې نظام د دوست محمد سخت مخالف شو. په ۱۷۲۳ م کال کې له دوست محمد سره لس زره عسکر وو او د مرکزي هند یوه لویه برخه دده په نوابۍ کې شامله وه. خو له دې وخته بیا د هغه تر مرګه یانې تر ۱۷۲۸ م کال پورې دده مشکلات هم مخ په زیاتېدو شول. په ۱۷۲۴ م کې نظام مغول ځواک ته سخت ګوزار ورکړلو، وروسته یې بهوپال ته مخه کړه چې له دوست محمد سره حساب برابر کړي. دوست محمد ورسره جنګ ونه کړ او د لنډې محاصرې نه وروسته یې یوه لوظنامه ورسره وکړه. ددې لوظنامې ترمخه ده خپل ۱۴ کلن زوی یارمحمد خان نظام ته د یرغمل په توګه وسپارلو او دوست محمد د نظام له خوا د اسلام نګر کلا دار وټاکل شو.

دا هر څه ښایي دوست محمد ډېر ځیرک شوی و او د نظام له ځواک سره د ډغرې وهلو پر ځای یې چې نتیجه به یې د دواړو کمزوري او د

مرهټه پیاوړتوب و. ده د سولې لاره غوره کړه. د ده تر واک لاندې اوس اوه زره کیلو میټره مربع ځمکه وه چې د اوسني اسرایل هومره ملک ترې جوړېږي.

په دې وروستیو څو کلونو کې دوست محمد زیات شمېر روڼ اندي، استادان، ارتیستان او عالمان بهوپال ته وربلل. د برو کټې پښتنو پرته دلته یوسفزي فیروزخېل او روهیله پښتانه په زیات شمېر کې مېشته شول چې خپل پښتني کلتور یې له ځانه سره راوړو. د هند د نورو مسلمانانو لپاره هم هغه وخت بهوپال یو د امن ځای و. هم په دې وروستیو کلونو کې د فتح بي بي له مرګه وروسته دوست محمد صوفي لاره خپله کړه.

دی په ۱۷۲۸م کې د ۵۲ کلونو په عمر کې مړ شو. ده له بېلا بېلو ښځو شپږ زامن یارمحمد، سلطان محمد، صدرمحمد، فاضل محمد، واصل محمد، خان بهادر او پنځه لوڼه درلودې.

د هغه پر وجود تر ۳۰ ډېر ټپونه وو چې دده د جنګونو د مېړنتوب نښې وې.

د معراج بي بي څلور اولادونه وو. خو یارمحمد د هغې زوی نه و. فتح بي بي اولاد نه درلود. او هغې یو ماشوم په غېږ اخیستی و چې ابراهیم نومېده. دوست محمد د کنور سردار بابيي سره هم واده کړی و چې د راجپوت انند سنګ لور وه او یو څو اولادونه یې لرل.

یوه هندوانۍ ښځه تر یوه بریالیتوب وروسته په انعام کې ورله ورکړل شوې وه چې نوم یې جای کنور و او د مسلمانېدو وروسته یې ورته تاج بي بي وویل. ددې درې اولادونه وو.

دا څرګنده نه ده چې د هغه ځای ناستي یارمحمد چې وروسته د بهوپال دویم نواب شو، د دوست محمد د کومې ښځې زوی و. ځینې

اندازې داسې دي چې کېداى شي دى د يوې مسلمانې ښځې زوى وي چې له معراج بي بي نه وروسته دوست محمد کړې وه.

په دې کې شک نشته چې دوست محمد د پخې ارادې خاوند و. ګنې په داسې يوه سيمه کې چې ۹۰ فيصده هندوان وي او خواو شا له هر لوري په دښمنانو کې راګېر وي د يوې مسلمانې نوابۍ جوړول اسان کار نه وو. هغه له فتح بي بي سره دومره مينه لرله چې د بهوپال سرکاري بېرغ تر اوسه فتح نشان نومېږي.

***



# دویــــم څــپــرکـــــی

## بهوپال په اتلسمه پېړۍ کې

بهوپال ـ د هندوستان پښتانه ___________________________

کله چې دوست محمد خان د مالوی په پراخه سیمه کې ځان ته د یو ملک د جوړولو هلې ځلې کولې. د ډیلي د تخت لپاره د مغول پاچا اورنګزېب د لمسو تر مینځ د واک لپاره سازشونه روان وو. یو پسې بل شهزاده پر شاهي تخت کښېناستو. او بیا به یا په جنګ کې او یا د سازش له لارې ووژل شو. په حیدرآباد کې د مسلمانانو تر ټولو لوی ریاست مشر نظام له مرهټو سره په جنګ و. او یو وخت د دوی لښکرې د دوست محمد لپاره هم خطر راودروو. دوست محمد په دې حال کې له هوښیارۍ کار واخیستو او له نظام سره یې د سولې تړون وکړو. ددې تړون له مخې ده نظام ته لس لکه روپۍ باج یو فیل او خپل ۱۴ کلن زوی یارمحمد د یرغمل په توګه وروسپارل. یارمحمد په حیدراباد کې څلورکاله تېر کړل. له ده سره د بهوپال درې عالمان ورلېږل شوي وو. خو د حیدرآباد په دربار کې د یارمحمد ښه روزنه وشوه. هغه اردو او فارسي ژبې زده کړې. د نورو شهزادګانو غوندې یې د اس سپرلي، د تورې او سیاست تعلیم وکړو. د دوست محمد د مړینې پر وخت حیدرآباد بهوپال د خپلو وزرو لاندې نیولی وو. او دې ریاست ته یې د ملګرې په سترګه کتل. نظام سمدلاسه د ۴۰۰ پوځیانو په بدرګه یارمحمد لکه د یوځای ناستي نواب بېرته بهوپال ته ورولېږلو. ده ته یې د نواب او امیر خطاب ورکړو اوله شاهي بېرغ او پوځي درناوي سره د یارمحمد فیل د بهوپال خاورې ته ورداخل شو. خو دلته له وړاندې د دوست محمد خان ژوندی وړور عاقل محمدخان د یارمحمد اته کلن مېرنی وړور د سلطان محمدخان نوابي اعلان کړې وه. ددې فیصلې تر شا د بروکټ پښتنو د ځنیو مشرانو غږ هم ورګډ وو.



د بهوپال ښار زړې دروازې



د بهوپال کلا

د دوست محمد دیوان (مشر وزیر) بیجي رام د یارمحمد په پلوي د سلطان محمد د نوابۍ دعوا ردکړه. ځکه یو خو دی ماشوم وو او بل د سیاست تجربه یې نه لرله. د سلطان محمد مور ته د جاګیر پېشکش وشو. او هغې د خپل زوی له حق نه لاس واخیستو دغسې په ۱۷۲۸ م د اګست پر ۳۰ نېټه یارمحمد د بهوپال د دویم نواب په توګه خپله دنده په غاړه واخیسته.

په کور دننه پښتنو هغه د دوست محمد د مشر زوی په حیث نواب ومنلو خو د مرهټو خطر هم هغسې موجود وو چې اوس د مالوی د کنټرول لپاره یې چریکي حملې کولې. یارمحمد له مرهټو سره همدغسې په یوه جنګ کې له نورو بندیانو سره یوه ښکلې راجپوت نجلۍ هم شامله وه چې مامولـه بايي نومېده. یارمحمد له وړاندې نورې ښځې لرلې. خو د خپل پلار په پل یې پل کېښود او له مامولـه بايي سره یې واده وکړو. په راتلونکو کلونو کې دې مېرمنې د بهوپال سیاست کې لوی اغېز وکړو. خو دا په خپله بې اولاده مړه شوه. د یارمحمد مشر زوی فیض محمد په ۱۷۳۱ م کې وزیر شو. دده څلور نور زامن حیات محمد، سعید محمد، حسین محمد او یاسین محمد له بېلا بېلو مېرمنو نه وزیږېدل.

خو مامولـه بايي د بهوپال په سیاسي چارو کې یو فعاله رول پیدا کړ، دې خپل نوم نه و اړولی خو مسلمانه شوې وه. او په بهوپال کې یې درې جوماتونه جوړ کړل.

د حیدراباد د نظام او د مرهټو ترمینځ رواني شخړې نه یارمحمد هم ګټه واخیسته او ځینې هغه کلي چې مرهټو نیولي وو بېرته یې ترې واخیستل.

د حیدرآباد نظام بهوپال خپله طرفداره سیمه ګڼله او له مرهټو سره چې یې جنګ وبایللو ددې سیمې اختیار یې د دوی مشر پېشوا باجي راو ته وسپارلو. یارمحمد اوس مجبوره شو چې مرهټو ته باج ورکړي. د بروکټ پښتانه په دې حالت خوشاله نه وو. او نږدې وه چې مرهټو بهوپال نیولی وای، چې په ۱۷۳۹ کې د ایران نادرشاه افشار پر هند حمله وکړه او په یوه ورځ کې یې د ډیلي ۲۰ زره کسان ووژل. مرهټه په دې حالت وبرېدل او فکر یې وکړو چې که نادرشا جنوب لوري ته خپلې حملې جاري وساتلې نو ډېر ژر به د دوی سیمه هم ونیسي. د یارمحمد لپاره د دوی حمله یوه خدایي مرسته وه. په ۱۷۴۰ م کال پېشوا باجي راو مړ شو او دده زوی دویم بالاجي د جنګ پر ځای د سیاست لاره غوره کړه. او د یوه تړون له لارې او د باج په بدل کې یې په بهوپال کې د یارمحمد نوابي په رسمي توګه ومنله. خو لږه موده وروسته د مرهټو نوي مشران یو واري بیا د خپلو مځکو او کلیو د بېرته نیولو په هڅه کې شول.

د یارمحمد د ۱۴ کالو په نوابۍ بهوپال یوڅه آرامي ولیده خو د مځکې ډېره برخه او پیسې یې ورو ورو مرهټو ته ورکول. دی د ۳۲ کالو په عمر مړ شو او د اورکزیو په کورنۍ کې د نوابۍ دعوې داران بیا راپورته شول. د یارمحمد مېړني ورور سلطان محمد خان دویم واري هڅه وکړه. ده له خپل ورور صدرمحمد سره یو ځای د فتح ګړ کلا ونیوله او د نورو پر ضد یې له مرهټو مرسته وغوښته او ورته یې د بهوپال له پنځو کلاګانو نه د یوې د ورکولو لوظ وکړ.

په دې موقع د یارمحمد کونډې ماموله بایي د اسلام نګر په کلا کې ددې بغاوت مخه ونیوله او ټولو ته یې دروغې جوړې لاره وښودله. د یارمحمد مشر زوی فیض محمد د ۱۱ کالو و. دی یې د

یارمحمد ځای ناستی اعلان کړ. او د دوست محمد د وفاداره بیبجي رام په مرسته یې د بهوپال عام ولس ځان سره کړو چې فیض محمد د نواب په توګه ومني. بیبجي رام پنځه زره پوځیان راټول کړل او د عیدګاه په غونډۍ یې د سلطان محمد خان پر ضد مور چې ونیولې. په دې وخت کې مرهټو هم له سلطان سره غداري وکړه او دی یې په میدان پرېښود. سلطان ماتې وخوړه او له ماموله بایي نه د بښنې غوښتونکی شو.

۲۷ کلنې ماموله بایي له دوی سره په دې شرط روغه وکړه چې دوی به تر عمره د نوابۍ دعوا نه کوي او پاتې ژوند به په کوروایي کې تېروي. فیض محمد خان د ماموله بایي تر څارنې لاندې لوېدو. دی د یو مذهبي او صوفي ځوان په حیث رالوی شو. او څومره چې وخت تېرېدو له قدرت او د نیاوي کارونو نه یې زړه تورېدو. ډېر ژر د شاوخوا سیمو خلک ده د دیني زده کړو او د نرم طبعیت له کبله ده زیارت ته راتلل.

په بهوپال کې اوس هم د فیض محمد عرس هندوان او مسلمانان دواړه لمانځي. په دې وخت کې عملا ماموله بایي د بهوپال واکمنه وه.او د مرهټو او راجپوتو علاوه ګاونډیو ریاستونو سره ټول سیاست د دې په لاس کې و. خو په دې وخت کې د یارمحمد ورور فاضل محمد خان له مرهټو سره پټې معاملې کولې او دا هیله یې وه چې دوی به یې د بهوپال نواب وټاکي. خوداسې ونشوه. ماموله بایي د مرهټه وو په مرسته د رای سین هغه مشهوره کلا محاصره کړه، چې یو واري دوست محمد نیولې وه، د هغه تر مړینې وروسته بیا د مغولو په لاس کې وه. په ۱۷۵۰ م کې په ډیلي کې مغول واکمن دویم عالمګیر وو، خو د هندوستان په پراخه خاوره اوس مغول، نظام او د

د ۱۹۴۷م کال د اګست دیارلسمه نېټه وه. د بهوپال په سرکاري دفتر کې نواب حمیدالله خان له خپل مېز سره ولاړ دی. د هغه توپنچه ډکه پر مېز پرته ده. د هغه تندی تریو او لاسونه یې یو پر بل کلک نیولي دي. لږه شېبه وروسته د هغه مشره لور دفتر ته ننوزي. دواړه یو بل ته سلام اچوي او سمدلاسه نواب خپلې لور ته وايي:

'زه پاکستان ته ځم. غواړم چې د بهوپال چارې ته پر مخ یوسې. کېدای شي ما د پاکستان مشر وټاکي. ما ته جناح ویلي دي چې راشه. خو زه غواړم چې ته ما ته د یوې خبرې ډاډ راکړې او هغه دا چې ما ته به د بهوپال له خزانې پنځه لکه روپۍ د کال رالېږې. ته دا خبره منې؟'

لور یوه شېبه د پلار په سترګو کې سترګې واچولې، خو خپل قهر یې نشو ځرګندولی. پلار ته یې بې ادبي نشوی کولای. پر مېز ایښې توپنچې ته یې اشاره وکړه او ویې ویل:

''ته ولې په ما د دې توپنچې ډز نه کوې؟ زه بې وسلې یم. دا نوابي تا پورې اړه لري. دا سیمه که له هند سره یو ځای کېده نو په دې فیصله زه خپله ګوته نشم لګولی او سبا به خلک وایي ښځه وه ځکه خو یې د دې خاورې له هند سره د یو ځای کېدو مخه ونه نیوله. او هغه وطن چې زموږ مشرانو په تېرو دوه نیم سوو کلونو کې د خپلو سرونو په بدل ساتلی و. یوې ښځې هند ته تسلیم کړ.''

د نواب حمیدالله خان دا لور عابده سلطان وه. چې د بهوپال د وروستۍ نوابې په توګه په دیارلس کلنۍ کې نوموله شوې وه او په ۲۰۰۲ د مې پر ۱۱ نېټه د ۸۹کلونو په عمر په کراچۍ کې په حق ورسېده.

راجپوت واکمني مخ په ختمېدو وه. هغه مهال په هندوستان کې دوه نور قوتونه ډېر په چټکۍ د دې خاورې په پوځي او سياسي ډګر کې په برلاسي کېدو وو. يو انګرېز او دويم مرهټه. خو هم په دې وخت کې د هند شمالي برخه د يوه بل قدرت د حملو لاندې وه. دا قدرت د احمدشاه ابدالي و. انګرېز تر دا دمه د هند ټول ساحلي ښارونه لکه کلکته او سورت کې ځان ته چاونۍ جوړې کړې وې. خو مرهټه لکه د سيلۍ هرې خوا ته ورتلل او د مسلمانانو ښارونه يې ورانول. په دې وخت کې دوی ته احمدشاه ابدالي د خدای له طرفه يوه مرسته ښکاره شوه. د جنورۍ په مياشت ۱۷۶۱م کې د پنجاب د پاني پت په ميدان کې چې د احمدشاه ځواکونو مرهټه وو ته ماتې ورکړه. نو د بهوپال خلکو دا د فيض محمد د نېکۍ او د هغه د دعاګانو ثمر وګڼلو. د هغه لپاره د بهوپال د عام ولس په زړونو کې نور هم قدر زيات شو.

په راتلونکو ۳۵ کالو کې فيض محمد د بهوپال واکمن و. خو عملاً حکومت د ماموله بايي او بيجي رام په لاس کې و.

په ۱۷۶۲ م کې د وفاداره بيجي رام د مړينې سره د پښتنو لخوا يو واري بيا د سازش ورونه پرانستل شول. د بيجي رام زوی ګهانسي رام ديوان مقرر شو. خودی د خپل پلار په شان ايمانداره نه وو او د هندو او مسلمان ترمنځ د کرکې او بې اعتبارۍ خبره يې په ډاګه کوله. په دې چلن هغه د يو پښتون له خوا ووژل شو. دده پر ځای يو مسلمان پښتون عزت خان ديوان وګومارل شو. خو ده له زهر ورکړی شو. درېيم ديوان کيساري لال وو چې دده کور يو پښتون په بارودو والوزو. بهوپال اوس يو ډېر سخت دور کې ورداخل شو. اخر د شخړې دختمولو لپاره ماموله بايي د فيض محمد کشر ورور ياسين ته د ديوان دنده ورکړه. چې د رياست انتظام دې په کورنۍ کې دننه پاتې

شي د مرهټو نوميالي مشران څه د پاني پت په ميدان کې او څه وروسته مړه شوي وو. د بهوپال په ګاونډ کې د هولکر راجه ملهار راو چې مړ شو نو د هغه کونډې اهليه بايي له دې مېړمنې سره ښه اړيکې وساتلې او څه موده د بهوپال شاوخوا سيمې آرامې شوې.

په ۱۷۷۵ م کال کې مرهټه رياستونه د ډيلي د واک د نيولو پر ځای خپلو رياستونو ته پام وګرځوو. ګواليار، ايندور، بړوده او ناګ پور خپلې واکمنۍ ټينګې کړې. خو په دوی کې د هر چا نظر په مالوه و. په ۱۷۷۶ م کال کې مهاجي راو سينده‌يا د مالوی د نيولو لپاره بهوپال ته لښکر يووړ.

ماموله بايي په دې وخت کې د جنګ پر ځای ورسره روغه وکړه او د پنځو ولسواليو سره يې د مالوی د هوشنګ آباد لرغوني کلا ورته وسپارله.

په ۱۷۷۷ م کې د ډسمبر پر دولسمه نېټه د بهوپال صوفي نواب فيض محمد خان د ۴۲ کالو په عمر کې له دې فاني نړۍ سترګې پټې کړې.

دی د خپلې ۳۵ کلنې نوابۍ دور کې يو واري د بهوپال نه بهر تللی وو. ده اولاد نه لرلو او دده کونډې صالحه بېګم چې د بهو بېګم په نوم پېژندل کېده د ماموله بايي سره د واک پر سر شخړه راپورته کړه.

د فيض محمد ځلوېښتي لا نه وه شوې چې ماموله بايي د يارمحمد بل زوی د څلورم نواب په توګه اعلان کړو. دی هغه وخت د ۴۳ کالو وو او زيات وخت يې په ښکار او ميلو کې تېروو. خو صالحه بېګم په دې فيصله خوشاله نه وه او د دوست محمد د کورنۍ نور غړي يې راولمسول چې د ماموله بايي مخه ونيسي. اصلي کيسه داسې وه چې ماموله بايي کله د يارمحمد سره ژوند پيل کړو او څه موده ددې اولاد

و نشو نو هغې څلور هندو هلکان په فرزندۍ واخیستل. دوی یې مسلمانان کړل او د خپلو اولادونو په شان یې د دوی روزنه وکړه. په دوی کې یو ماشوم د هندوانو د لوړې طبقې برهمن و او چهوټې خان په نوم وپېژندل شول نو مامولې بايي چهوټې خان هم د دیوان په توګه وروړاندې کړو. صالحه بېګم په دې خبره خوشاله نه وه او مامولې بېګم یې تورنه کړه چې د خپلو هندوانو لپاره د نوابۍ لاره پرانېزي. صالحه بېګم د فاضل محمد خان لور وه چې د خپل وراره فیض محمد پر ضد یې د مرهټو پېشوا سره په بهوپال د حملې سازش کړی و. وروسته چې مرهټو دی پر میدان پرېښودو نوزړه ماتی مړ شو. مامولې بايي د فاضل محمد کونډه عزت بېګم د خپلې اته کلنې لور صالحه بېګم سره بېرته بهوپال ته راوستله. او د خپل سیوري لاندې یې وساتل. داسې ښايي چې د صالحه بېګم په دې وخت کې د مامولې بايي سره کینه پیدا شوه.

چهوټې خان د دیوان په حیث ډېر ژر د بهوپال چارې په سمه لاره رواني کړې. پوځ یې منظم کړو. د پولیسو محکمه یې جوړه کړه. د تجارت او کاروبار لپاره یې اسانتیاوې برابرې کړې. د ښار لارې کوڅې یې جوړې کړې او په بهوپال کې د یو شمېر سیندونو د پاسه یې د پلونو د جوړولو پرته په بن ګنګا سیند یو بند هم جوړ کړو چې اوبه د کر مځکو ته ورسېږي. ده په ۱۴ کالو کې بهوپال د یوه کلي نه په یوه ښکلي ښار واړاوه.

صالحه بېګم د خپل خاوند له مړینې وروسته لیدل چې مامولې بايي اوس زیات اختیارات چهوټې خان ته سپارلي وو. یوه ورځ یې د دوست محمد خان لمسي شریف محمد خان ته پېغور ورکړو چې که زه سړی وای نو یوه برهمن غلام ته به مې دومره اختیار نه وای ورکړی

چې د دوست محمد خان پر کورنۍ حکومت وکړي. کله چې مامولـه بايي د فيض محمد ځای ناستې حيات محمد خان وټاکلو. نو صالحه بېګم د دې ځرګند مخالفت ته ملا وتړله. دې د فتح ګړه نه پنځه ميله لـرې په اسلام نګر کې د فيض محمد لـه قبر سره څنګ کې ديوه خپلواکـه حکومت اعـلان وکـړو او سـرکاري دربار بـه يـې جـوړاوه بهوپـال اوس عمـلا پـه دوو برخـو ويـشل شـوی و. صـالحه بـېګم همدغسې درې کاله يو مساوي حکومت چلوو.

مامولـه بايي ورتـه پېغامونـه ولـېږل چې كه دا د يارمحمد هر يو وروړ غـوارې د هغـه نـوم دې د د واكمنـی لپـاره وړانـدې كـړي. حيـات محمد خان هم دې ته رضا شو چې د صالحه بېګم د خوښې واكمن تـه بـه سر ټيټ کړي. خو هغې شريف محمد تـه د جنګ د تيـاري لپـاره وويل. شريف محمد د پنځه زره عسكرو د برابرولو لپاره لـه صالحه بېګم نه د پيسو غوښتنه وکړه. خو صالحه بېګم پيسې نه لرلې. شريف محمد چې خبر شو نو هغې تـه يې وويـل: "پـه تـشه خېټـه جنګ نـه کېږي".

چهوټې خان د بهوپال چارې هم هغسې پر مخ بوولې. خو هغـه انـدازه ولګوله چې صالحه بېګم دومره زور نه لري څومره چې شريف محمد ورته خطر جوړېدای شي. ده دوه ورونه لرل او دده ځلمی او تکړه زوی وزير محمد لكه د دوست محمد د تورې مېړنی و.

د صالحه بـېګم سره د لاس يوځای کولو لپاره دی دبغاوت پـه تـور تـورن او لـه بهوپالـه وشـړل شـو. شـريف محمـد خان د راجپـوت يـو ګاونډي رياست ته پناه يوړه. ده سره د ده د ټبر خلک هم وو. راجپوت هندوانو د دوی تود هرکلی وکړو او د ګينور د کلا د نيولو لپاره پـه جنګ کې ورسره ودرېدل.

دا د حیات محمد خان واک ته لومړی لوی ګواښ و چې په خپله پښتنو ورته ودرولی و.

په ۱۷۸۷ کې د بهوپال نه اته میله لویدیځ کې د پهندا په کلي کې د دواړو غاړو پوځونه جنګ ته راووتل. ددې جنګ پر وخت حیات محمدخان په بهوپال کې پاتې وو. دده د پوځ مشري چهوټې رام کوله او ورسره راجپوت. سیکان او د بهوپال سرکاري پوځ و. شریف محمد سره دده ورونه او راجپوت مله و. وزیر محمدخان د ښځو او ماشومانو د ساتنې لپاره په اشتا نومي کلي کې پاته شو. جنګ پیل شو، د تورو ټوپکو او توپو په درزا سخته مرګ ژوبله وشوه. شریف محمد سره د خپلو پنځو ورونو ووژل شو. یوازې یو وروړ کامل محمد ژوندی پاتې شو. چهوټې خان د شریف او دده د ورونو سرونه پرېکړل او په تورو ټومبلي حیات خان ته یې وړاندې کړل. حیات خان په دې کار سخت ناکراره شو او په لومړي ځل د چهوټې خان د شخصیت منفي اړخ ورته ځرګند شو. د اورکزیو په ټبر کې دا پېښه یوه لویه غمیزه وه او په راتلونکو نهو کالو کې چهوټې خان د بهوپال ټول پښتانه د ځان پر ضد راوپارول. دی لکه د یوه کاواکه اس د هېچا قابو کې نه راتلو. په ۱۷۹۲ م کې ماموله بایي د اتیاو کالو په عمر مړه شوه. له دې څو میاشتې وروسته چهوټې خان هم مړ شو.

د حیات محمد خان له شریف محمد کورنۍ سره شوی ظلم هیر نه وو. د هغه زوی وزیر محمد د راجپوتو سره اوسېدو او حیات محمدخان چې خپل نالایقه آرام طلبه زوی غوث محمد ته لیدل نو ددې خبرې احساس ورته زیاتېدو چې دی د نوابۍ وړ نه و. په ۱۷۹۴ م کال کې د بروکټ د پښتنو د یوه جنرال لور زینت بېګم یې غوث محمد ته واده کړه. د زینت پلار له مرهټو سره د سسبې هور په

جنګ کې وژل شوی و او مور عصمت بېګم یې د بل ماشوم په زېږون مړه وه. د زینت بېګم نه د غوث محمد درې اولادونه وزېږېدل. دوه زامن موعېز او پوځدار او یوه لور یې ګوهرآرا نومېده. اخوا د شریف محمد زوی وزیرمحمد د راجپوتو نه ولاړو او یو څه موده د حیدرآباد د نظام دربار کې ملازم شو او په خپل استعداد ښه مقام ته ورسېدو. خو حیات محمد غوښتل چې وزیر سره روغه وکړي. هغه لیدل چې غوث محمد د بهوپال د ساتنې نه وو. ده وزیر محمد راوبللو او ده ته یې د دیوان او د پوځ د مشر د دندې پېشکش وکړ. خو غوث محمد د خپل پلار ددې فیصلې مخالفت وکړ. ځکه هغه د خپلو اختیاراتو او اغېز لپاره وزیر یو ګواښ وګڼلو. اخر وزیر ته په بهوپال کې د استوګنې اجازه ورکړی شوه. او د دیوان د دندې لپاره مرید محمد خان راوبلل شو. مرید د سلطان محمد خان زوی و، چې دوه وارې یې د نوابۍ دعوا کړې وه. مرید په ۱۷۹۲ د خپلو ۱۰۰۰ تنو ملګریو سره بهوپال ته ورداخل شو او ژمنه یې وکړه چې یو وارې بیا به د پښتنو واکمنې پر ځای کړي. د مشر وزیر (دیوان) په حیث ده د پیسو په لګولو لاس پورې کړو. د پوځ تنخواګانې یې زیاتې کړې. د ودانیو په جوړولو یې لاس پورې کړ او چې خزانه یې خالي ولیده نو پر مځکه والو یې زور راوړو چې مالیه ورکړي. کله چې به دوی انکار وکړو نو په بندي خانو کې به یې واچول. په یوه کال کې دننه د مرید اصلي څېره راښکاره شوه. د بهوپال ځینې مځکې یې پنډاریانو ته ورکړې او چې د پوځ د تنخوا پیسې هم پاتې نه شوې نو پوځ بغاوت وکړو. په دې وخت کې مرهټه یو وارې بیا د بهوپال سرحدونو ته خطر ودروو. مرید ته بله هېڅ لاره ښکاره نه شوه نو د حیات محمد مېرمنې عصمت بېګم ته ورغلو. دا مېرمنه په حیات محمد ډېره ګرانه وه او په دربار

کې یې ډېره اغېزه لرله. په ۱۷۹۷ کال د ډسمبر پر ۳۰ مه نېټه دا ډېردې تر شا کښېناستله او د مرید غوښتنه یې واورېده چې خپلې ګاڼې او نغدې دې ورته وسپاري چې د مرهټو سره جنګ لپاره تیاری وکړي. عصمت بېګم په ځواب کې ورته وویل چې د مځکه والو نه مالیه راټوله کړه. په دې ځواب مرید په قهر شو، پرده یې وشلوله او پر عصمت بېګم یې برید وکړ. هغې منډې کړې خو په پونو یې راګېره کړه او ویې وژله. د هغه ملګریو د عصمت بېګم ساتونکی خواجه سراګلاب هم ووژلو. دوی د عصمت بېګم ګاڼې، نغدې پیسې او هرڅه چې په لاس ورتلل واخیستل او له هغه ځایه ولاړل. د حیات محمد کورنۍ په دې پېښه هک پک پاتې شول او مرید په خپله دفاع کې وویل چې ده ته غوث محمد ویلي وو چې دا ښځه دې مړه کړي. خو هېچا په ده باور ونه کړ. ده د حیات پر ضد د فتح ګړ کلا ونیوله او مرهټو ته یې پیغام ورواستاوه چې د بهوپال په نیولو به دی ورسره ملا وتړي. په دې پېښه حیات محمد د مرید د غدارۍ اندازه ولګوله او سمدستي یې وزیرمحمد راوبللو چې د مرید چاره دې وکړي. وزیرمحمد ۱۰۰۰ تنه پښتانه راټول کړل او بهوپال ته ورننوتل. لومړی یې د هوشنګ آباد کلا له مرهټو ونیوله. مرید محمد د ګوالیار او ناګپور مرهټه راجه ګانو ته پیغامونه ورواستول چې د بهوپال د نواب پر ضد دده د بغاوت ملاتړ وکړي. د ګوالیار جنرال بالار او مرید ته خپل پوځ په دې شرط واستولو چې د بهوپال له دوو لویو کلاګانو څخه به یوه ده ته ورکوي. مرید ورسره د اسلام نګر د سپارلو ژمنه وکړه. دی پخپله د اسلام نګر پر لوري ولاړو چې دا کلا د مرهټو پوځ ته ورکړي. او د فتح ګړه په کلا کې یې د مرهټو یوه ډلګۍ پرېښوده چې د حیات محمد او غوث د تېښتې مخه ونیسي.

اسلام نګر ته په رسېدو مرید خبر شو چې دا کلا اوس د حیات محمد خور موتي بېګم سمبالوي او هغې خپلو ساتندویانو ته امر ورکړی و. چې پر مرید حمله وکړي. له دې ځایه مرید په تېښته د رای سین کلا ته مخه کړه. دا یې ونیوله او بالا راو ته یې تسلیم کړه. له دې ځایه د مرهټو له ۴۰۰۰۰ زره عسکرو سره د فتح ګړ کلا د محاصرې لپاره روان شو. مرید سره دغه وخت د ګوالیار، ناګ پور او د ټونک د نواب امیرخان پنډاري جنګیالي ملګري وو. بلې خوا ته د حیات محمدخان سره وزیرمحمد او د امبایاني جاګیردار قلي خان ولاړ و. وزیر محمد د فتح ګړ په کلا کې ډېره مېړانه وښودله او اخر بالا راو مجبوره شو چې خپل پوځ پر شا کړي. ډېر ژر بالاراو خبر شو چې مرید ورته دروغ هم ویلي وو، نو هغه یې ونیولو او په سرونج کې یې بندي کړو. مرید په بندي خانه کې د الماسو زرې وخوړلې او ځان یې په خپله ووژلو. وزیرمحمد مرهټو ته د ماتې ورکولو وروسته په پورا اعزاز د حیات محمد له خوا د بهوپال دیوان او د پوځ مشر وټاکل شو. او په راتلونکو اوو کالو کې یې د بهوپال هغه سیمې چې نورو ترې نیولې وې ډېر په سیاست ببرته واخیستې.

ده له انګرېزانو سره هم خبرې اترې پیل کړې. چې د ده د قوي ګاونډیانو په مقابله کې د بهوپال ساتنه وکړي. خو غوث محمد له مرهټو سره بېل سازشونه پیل کړي وو. حیات محمدخان په ۱۸۰۷ م کال د ۷۳ کالو په عمر مړ شو او غوث محمد د پنځم نواب په توګه واک ترلاسه کړ. اوس هغه په ښکاره د وزیر محمد مخالفت پیل کړ او وزیر د شخړې پر ځای بهوپال یو واري بیا پرېښود او د ګینور په کلا کې مېشت شو. د وزیر له وتلو سره مرهټه بیا برلاسه شول او غوث محمد په خپله کلا کې لکه د نظربند پاتې شو. د روغې لپاره یې خپل

زوی موعېز مرهټو ته وسپارلو چې ناګپور ته يې يوړو. وزيرمحمد يو واري بيا د بهوپال ژغورنې ته راغی. خو دا ځل مرهټه ځواکونو د اوږدې مودې پلان سره بهوپال محاصره کړ.

بهوپال تر يوه کاله پورې تر محاصرې لاندې و. نژدې ۸۲۰۰۰ پوځيان د دې چارچاپېره ولاړ وو. د وزير ملاتړي، سکان، راجپوت د ټونک اوسېدونکي او د پنډارې پښتانه له کلا ووتل. له وزير سره يوازې ۲۰۰ افغانان پاتې وو. غوث محمد خان د لوږې او محاصرې د سختو زغم نه لاره او وزير هغه ته اجازه ورکړه چې له خپلو هيجړاګانو او د کورنۍ سازوسامان سره د بهوپال له کلا نه ووزي او يو کور کې مېشت شي. عجيبه خبره دا وه چې محاصره کوونکيو هم د نواب په راتلو باندې هېڅ غرض ونه کړ. د هغوی لپاره غوث محمد خان اوس يوه له کاره وتلې سيکه وه. يوه بله عجيبه خبره دا وه چې غوث محمد خان لومړۍ مېرمن زينت بېګم او د هغې ۱۴ کلنه لور قدسيه په بهوپال کې پاتې شول او دا هوډ يې وکړ چې تر مرګه به د بهوپال په دفاع کې هلته پاتې وي.

د محاصرې شپږ مياشتې چې پوره شوې، نو په کلا کې د خوړو لپاره هېڅ پاتې نشول. مرهټو به هره شپه حمله کوله. ګولۍ او بارود په ختمېدو وو. په دې موقع زينت بېګم له پردې راووتله. ټولې ښځې وريسې شوې او دوی د پوځ تر شا ودرېدلې. دوی به پوځيانو ته خواړه رسول. د توپونو او ټوپکو ډکول يې کول د سرېو په شان جامې يې واغوستلې او له بارودو ده د کار اخيستو چل يې زده کړ. يوه پلا دوی په فلزي نغريو کې بارود کېښودل او له کلا نه يې پر دښمن ورويشتل چې په مخکې له لګېدلو سره به وچوېدل. زينت بېګم په دسترخوان ټولې ښځې راټولولې او ډوډۍ به يې ورکوله. يوه ورځ د

هغې يوه خدمتګاره چې کور به يې جارو کولو رانغله. زينت بېګم له نورو پوښتنه وکړه نو هغو ورته وويل چې د خدمتګارې ماشومانو له دوو ورځو هېڅ نه دي خوړلي. هغې ورته د املي (يو ډول بوټي) پاڼې وايشولې چې ويې خوري. زينت هغه خدمتګاره راوبلله او سمدلاسه يې خپلې لور قدسيې ته وويل:

هغه دوه چپاتې چې د خپل ورور فوځدار لپاره يې ايښې وو دې ښځې ته ورکړي.

قدسيې هغې ته يو چپاتي ورکړ او بل هغه يې په خپلو جامو کې د خپل وړوکي ورور لپاره وساته. کله چې خدمتګاره روانه شوه نو زينت هغه ودروله او چپاتی يې ولید. لور ته يې مخ ورواړاوه او په قهر يې ورته وويل: زه خبره وم چې ته به درغلي کوې او يو چپاتی به ورور له ساتې. ما درته وويل چې دواړه ډوډۍ دې ښځې ته ورکړه.

په يوه بله موقع د هغې زوی موعيز د کلا په څنډو د توپچي دنده په غاړه لرله چې نابېره د توپک په يوې ګولۍ تپي شو. زينت په منډه ورته ورغله. له خپلې لوپټې نه يې پټۍ ورته جوړې کړې. د هغه پرهارونه يې پرې پټ کړل او بيا دا خپله توپې ته ودرېده او د خپل زوی د هوش تر راتلو پورې يې په خپله توپه چلوله. د محاصرې په نهمه مياشت چې نور د خلکو حوصلې ماتې وې، وزيرالملک يو جنګي مشاورت راوبللو. هغه اعلان وکړ چې دی به د ښځو او ماشومانو د خوندیتوب غوښتنه وکړي. او کله چې دوی له کلا ووتل، نو ۳۰۰ تکړه ځوانان به يو وروستی يرغل په محاصره کوونکيو وکړي او سرونه به بايلي...

د وروستۍ حملې فيصله يوه ورځ وځنډول شوه، هغه ځکه چې د کلا له يوه دېوال سره نږدې د بارودي وسلو يوه زېرمه موندل شوې وه

دا د اورکزیو د هغې کورنۍ مېرمن وه چې د هند په مدهیه پردېش ایالت کې یې د اتلسمې پېړۍ په سر کې د بهوپال د خپلواکې نوابۍ بنا کېښوده.

د هندوستان په پراخه خاوره کې له لرغونو وختونو څخه هرې سیمې د انتظامي چارو لپاره یو واکمن لرلو. د پښتنو، عربانو، ترکانو او مغولو له خوا چې هرکله دا سیمه نیول شوې او د دوی سلطنت پرې جوړ شوی، نو دغو سیمه ییزه واکمنو ته یې درناوی کړی دی. او که جګړه یې ورسره نه کوله، نو د باج او خراج په بدل کې یې ورته القاب او خطابونه ورکړي دي. هغه صوبې یا ایالتونه چې لکه د پاچاهانو په کې راجه ګان او نوابان واکمن وو، د خپلې سیمې د خلکو لپاره هم مهم وو. د ځمکو د شخړو، د امنیت، د ناروغۍ او وبا او دغسې نورې ورځنۍ چارې د نوابانو له خوا ټاکل شوي پولیس، پوځ، قاضیانو او وزیرانو اداره کولې. د یو پاچا د یوه کامیابه حکومت تر شا هم دغه نوابان او راجه ګان وو. د بهرني یرغل پر ضد د پوځ برابرولو لپاره به هم دې نوابیو ډېر لوی رول ترسره کاوه.

په ۱۹۰۰ عیسوي کال کې چې انګرېزان د هند په لویه وچه واکمن وو، د دې نوابیو او راجواړو په اړه یې یوه تذکره لیکلې چې د هغې له مخې د هند او اوسني پاکستان او بنګله دېش په ګډون دلته تر شپږو سوو ډېر نوابان او راجه ګان وو. په نولسمه پېړۍ کې ځینې ریاستونه او ایالتونه لکه اسام، مرهټه او پنجاب په انتظامي توګه خپل حیثیت له لاسه ورکړی و.

په ۱۹۴۷م کال کې د انګرېزانو په حساب ۵۲۵ ریاستونه موجود وو. په دې کې زمینداري او ټیکانې هم شاملې وې. زمینداري یوازې په یو څو کلیو مشتمله وه. دوی ته به یې تعلق دار یا جاګیردار هم

ښځو د سړیو جامې واغوستې او د کلا پر دېوال په کتار کې له سړیو سره یو ځای اوږه پر اوږه ودرېدې. چې برید کوونکیو ته خپل شمېر ډېر وښیي. دوی خبر نه وو چې د مرهټو په پوځ کې د کولرا وبا ګډه وه او د دوی ځواک هم کمزوری شوی وو. له دې علاوه د ناګپور د پوځ مشر صادق علي د ګوالیار له مشر جاګوا باپو سره اختلافات پیدا شوي وو او هغه خپل پوځ له محاصرې لرې کړی وو. ځکه خو د بهوپال له خوا د حملې په ورځ محاصره کوونکیو هېڅ مقاومت ونه کړ کله چې د حملې لپاره د کلا لویه دروازه خلاصه شوه. نو د باپو د پوځ ډېره وړه برخه هلته موجوده وه. د کلا له دېواله نه ښځو د توپونو ډزې پیل کړې او د وزیر محمد خان په مشرۍ یې په پوره زور باندې حمله وکړه. او هغوی یې تېښتې ته اړ وېستل. د مرهټه وو مشر له کولرا مړ شو او کومندان یې د الماسو زرې وخوړې او ځان یې په خپله ووژلو. د بهوپال د دفاع اتل وزیرمحمد شو او د دوست محمد تر مړینې وروسته یو واري بیا د دوی مشري د یوه غښتلي کس په لاس ورغله. خو وزیر په رسمي توګه د نوابۍ له اخیستو انکار وکړ. هغه غوث محمد خان ته بیا هم د نواب په سترګه کتل خو په ښکاره یې له واکه لرې کړی و. عامو خلکو وزیر ته درناوی کاوه او غوښتل یې چې دی د بهوپال د مشر په توګه پاتې وي. د محاصرې ختمېدو لږه موده وروسته د ګوالیار یوه کلي پر بهوپال د خېټې اچولو هڅه وکړه. په ۱۸۱۹ کې انګرېزانو په هند کې خپلې پښې کلکې کړې وې او د مغول واک تر ډېلي پورې محدود و. دوی د ګوالیار راجه ته په سخته وویل چې بهوپال به د انګرېزانو تر تحفظ لاندې د یوې ازادې نوابۍ په توګه پاتې وي

***

وزير محمد خان نهه كاله د بهوپال نواب پاتې شو او په ۱۸۱۲ عيسوي كال كې د ۵۰ كالو په عمر مړ شو. دده دوه مېرمنې وې او له دواړو نه يې يو يو زوى لاره. يو امير محمد خان او بل نذرمحمد خان نومېده. د نذرمحمد مور يوه راجپوته هندوه وه. غوث محمدخان خپله لور ګوهر بېګم (قدسيه) نذرمحمد ته په نكاح كړې وه او وزيرمحمد تر مرګ له مخه د خپل زوى اميرمحمد خان پر ځاى نذرمحمد د نوابۍ لپاره ځاى ناستى ټاكلى و. نذرمحمد چې نواب شو، نو په ۱۸۱۷ كې ګوهر بېګم ورته واده شوه. په هغو ورځو كې دا رواج و چې د پښتنو كورنيو تر منځ د نجلۍ او هلك د كوژدنې او نكاح فيصله به په ډېر وړوكوالي كې كېده. دا د دې لپاره چې كورنۍ يې خپلو كې يوه ټينګه خپلولي ولري. كله ناكله به د دوو كورنيو تر منځ د تاو تريخوالي وركولو لپاره هم دا كار كېدو. د دښمنۍ او تربورانو تر منځ يو بل ته د سازشونو مخنيوى هم په دې رشتو خېښيو كېدو.

د نذر محمد خان د نوابۍ دوره په بهوپال كې د امن او بيارغونې يو زرين دور و. ده لكه د خپل پلار وزيرمحمد خان له انګرېزانو سره ښه اړيكي ساتلي وو چې اوس يې ورو ورو د هندوستان له ساحلونو ددغه هېواد مركزي خاورې ته پښې غزولې وې. هغه نوابۍ او راجواړې چې انګرېزانو ته خواخوږې وو خپلې مځكې يې له ځان سره وساتلې.

نذرمحمد خان به د كال ۵۱ لكه روپۍ انګرېزانو ته وركولې او په بدل كې دوى ورته هغه پنځه پرګنې بېرته وركړې، چې مرهټه وو نيولې وې. د مرهټه وو مشر سندهيا د هوشنګ اباد او د اسلام نګر

کلاګانې هم بېرته بهوپال ته ورخوشې کړې. همدغه وخت کې د پرغلګرو يوه ډله چې په کې د هر نسل او مذهب خلک شامل وو په ورو ورو نوابيو او راجواړو حملې کولې او چور تالان به يې پرې ګډ کړ. دا پرغلګر پنډاري نومېده او تر ډېرې مودې يې د انګرېزانو پوځ په مخه اخيستی و. د بهوپال پخواني نواب غوث محمد خان لا ژوندی و. خو په اصل کې نذرمحمد د بهوپال واکمن و چې په رسمي توګه يې نوابي نه وه اعلان شوې. په ۱۸۱۸ کې نذرمحمد له انګرېزانو سره يو تړون لاسليک کړ چې له مخې يې بهوپال د يوې خپلواکې نوابۍ په توګه له نوابانو سره پاتې شو. د انګرېزانو لپاره له بهوپال سره دا تړون په مرکزي هند کې د امنيت لپاره يو مهم ګام و.

خو دا خپلواکي تر دې حده وه چې خپله په بهوپال کې نواب هر ډول اختيار ولري، ولې د ګاونډي راجه ګانو او نورو رياستونو سره د انګرېزانو د اجازې پرته هېڅ تړون او بله معامله نشي کولای. په دې وخت کې انګرېزانو په بهوپال کې خپله چاونۍ هم جوړه کړه چې ۴۰۰ پلي عسکر او ۲۰۰ اسونه به په کې ساتل کېدل. د نذرمحمد او ګوهر بېګم (قدسيه) يوه لور وشوه چې دوی ورته سکندر بېګم نوم ورکړ. په ۱۸۱۹ کې کله چې نذر محمد د اسلام نګر په کلا کې له خپلې ماشومې لور سکندر بېګم سره لوبې کولې د ګوهر بېګم وړوکي ورور پوځدارخان چې اته کلن و له يوې تمانچې سره لوبې کولې په خطايي کې يې ګولۍ وچلوله او نذرمحمد له ټپي کېدو وروسته مړ شو. يوه بله کيسه داسې ده چې د نذرمحمد دښمنانو پوځدار خان ته د تمانچې چلولو چل ورزده کړی و او دی يې پوه کړی و چې پر خپل تربره دې ډز وکړي. پښتانه هلکان له وړوکوالي د وسلې په چلولو پوهېږي او کېدای شي چې دا خبره رښتيا هم وي.

پوځدار خان د غوث محمد زوی و او د نذرمحمد په وژلو کېدای شوه چې غوث محمد بېرته د بهوپال واکمن شوی وای.

د انګرېزانو استازي مېجر هېنلې د دې وژنې په اړه په خپل رپورټ کې کښلي چې د تمانچې ډز له دومره نژدې شوی و چې د هغه وېښتان او د مخ پوستکی يې سوځولي وو. هغه په دې کې شک نه لاره چې نذرمحمد په خطا ويشتل شوی و.

د نذرمحمد وژنې د بهوپال لپاره بيا يو خطر راپيدا کړ. وزيرمحمد او نذرمحمد چې تر اوسه کوم کامونه پورته کړي وو په دې د بهوپال عام ولس او د دوست محمد کورنۍ يو څه ناڅه خوشاله وو.

له تيرا څخه له دوست محمد خان سره يو بل اورکزی چې له مېشتي خېل قام نه و، د بايزيد زوی کيليګ خان نومېده. د دوست محمد خان د مړينې وروسته د کېليګ خان زوی عمرخان د خپل پلار په شان د دوست محمد خان کورنۍ ته پتمن پاتې شو. دا هغه خلک وو چې د نن سبا په الفاظو ورته مسلکي پوځيان ويلای شو.

د عمرخان زوی الف خان د نواب فيض محمد خان د پوځ کومندان (بخشي بهادر) و او ده خپله دنده خپل زوی محمدخان ته وسپارله چې د حيات خان د پوځ کومندان و. د محمدخان زوی بهادرخان هم د بهوپال په محاصره کې توري برېښولې وې او د خپلې مېړانې لپاره يې ښه نوم ګټلی و. په راتلونکې کې بهادرخان او د هغه اولادونو د بهوپال په تاريخ کې مهم رول ولوبولو.

د نذرمحمد په مړينې د دوست محمد په کورنۍ کې د نوابۍ لپاره ډېر دعوا داران راپورته شول. د غوث محمد ۲۵ اولادونه وو. دده مشر زوی موعېز چې د ګوهر بېګم سکه ورور هم و د نوابۍ قوي

مدعي و. غوث محمد په خپله ژوندی و خو دومره کمزوری او زوړ شوی و چې د ببرته نواب کېدو امکان يې ډېر کم و.

د وزير محمد خان مشر زوی امير محمد خان هم په دې هيله و چې د ګدۍ اصلي وارث دی دی.

د نذرمحمد د مړينې دريمه ورځ وه. د اورکزيو ټول ټبر د هغه په کور کې د دربار په لوی تالار کې يو ځای شوی و. د نذرمحمد خان د پوځ کومندان بخشي بهادر هم هلته موجود و. له فاتحې او خيرات وروسته پر دې خبره بحث روان و چې د نوابۍ لپاره به مناسب کس څوک وي؟

د نذرمحمد کونډه نولس کلنه ګوهر بېګم (قدسيه) په بورقه کې پټه ناسته وه. په غېږ کې يې پنځلس مياشتنۍ لور سکندر بېګم نيولې وه. دويم ماشوم يې په نس و. هغې په تالار کې د ناستو پښتنو تر منځ له مخه پرونۍ لرې کړ او هغوی ته يې خپله وينا پيل کړه. هغې د خپلې کورنۍ د اختلافاتو او د بهوپال د تېرو سختو ورځو شپو د ذکر نه وروسته خپله دعوا وکړه چې د نوابۍ حقداره د هغې ماشومه لور سکندر بېګم ده. بيا يې د خپل مړه خاوند نذرمحمد ليکلی وصيت ټولو ته ښکاره کړ چې په کې يې کښلي وو:

که دی چېرې ناڅاپه مړ شي نو دده لور سکندر بېګم به نوابه وي او تر څو چې دا ځوانه شوې نه وي پخپله ګوهر بېګم (قدسيه) به د دې سرپرسته او د بهوپال واکمنه وي. سکندر بېګم چې ځوانه شي نو د اورکزيو په کورنۍ کې به ودېږي او له واده وروسته به د هغې خاوند د بهوپال نواب شي.

ګوهر بېګم دا دعوا هم وکړه چې په دې فيصله د بهوپال خلک هم خوشاله دي او ځينو مذهبي مشرانو دا فيصله لا پخوا منلې وه. بيا

يې تولو ته وويل: که څوک په دې فيصله اعتراض لري نو راپورته دې شي او په ډاګه دې خپله خبره وکړي.

په دربار کې ناست ټول خلک غلي وو. د اعتراض مانا دا وه چې دوی به د نذرمحمد د وژلو په سازش کې څه ناڅه لاس لري.

نذرمحمد ته پتمنو څلورو سلاکارانو هم هغه وخت د قدسيه بېګم په فيصله خوښي څرګنده کړه. نورو هم ورته سرونه ټيټ کړل. ډېر ژر په بهوپال کې د سکندر بېګم د نوابۍ او د هغې د مور قدسيه بېګم د سرپرسته کېدو خوشالي ولګېده.

د خپلو مخالفينو د خولې بندولو لپاره قدسيې ډېر ژر هر چا ته مراعات او امتيازات وروسپارل. خپل لوی مخالف مشر ورور موعېز ته يې جاګير ورکړو. پوځدار خان ورو کی و هغه يې تر خپلو وزرو لاندې کړ. له خپل لېور اميرمحمدخان سره يې ژمنه وکړه چې د هغه زوی منير محمد خان ته به خپله سکندر بېګم ورکوي او دغه ډول به منير نواب هم شي. قدسيه پوهېده چې سکندر لا وړه ده او تر راتلونکيو ۱۲ کلونو پورې به دا واکمنه وي.

له دې هر څه سره قدسيه د انګرېزانو استازي مېجر هېنلي ته د تصويب لپاره خپله فېصله واوروله. هغې د نذرمحمد د وصيت دليل ورته ورکړ.

د انګرېزانو لپاره د يوې ښځې مشري د تشويش وړ وه. دوی د بهوپال په ملګرتيا کې د مرهټه وو مخالفت منلی و. دوی فکر کاوه که په دې رياست کې سړی واکمن وي نو د دوی دريځ به غښتلی او ټينګ وي. خو په ولس او کورنۍ کې دننه د هغې ملاتړ انګرېزان دې ته مجبوره کړل چې هغه د نوابۍ په توګه ومني.

همدا وه چي قدسيه بېګم د خپلي ماشومي لور د سرپرستۍ په توګه د نوابۍ په تخت کښېناسته. ددې لپاره چي څوک د اسلامي اصولو له مخي د هغې لاره ونه نيسي دې يوه فتوا د بهوپال له مفتي او بله د قاضي لخوا تر لاسه کړه. دغه سند هغې خپلو خپلوانو، اميرانو او سردارانو ته هم ورکړ چي تصويب ورباندې وکړي.

په هغه وخت کي داسي اوازه ګډه شوه چي قدسيه بېګم د خپل خاوند نذرمحمد په وژلو کي لاس لري. ددې وخت د پرېشانيو يو تاوان دا وشو چي نازېږېدلی ماشوم ضايع شو او ددې خبرې امکان نور هم کم شو چي د دوست محمدخان د اولادونو وزير محمد او د غوث محمد کورنۍ به بيا متحدې شي.

انګرېزانو په دې وخت کي د سکندربېګم او منير محمد خان د کوژدني خبره ومنله او مياشت وروسته يې ماشوم منير په رسمي توګه د نوابۍ په ګدۍ کښېنولو. خو شرط دا و چي قدسيه بېګم به يې سرپرسته وي او کله چي د دې لور سکندر بېګم د ځوانۍ سن ته ورسېده او منير ته واده شوه نو پخپله به نوابي هغه ته ورپرېږدي.

قدسيه بېګم د خپل خاوند د وصيت پرځای کولو، خپلو تربورانو سره سره د يو بل قام په استازي د خپلي خبرې د منلو لپاره له ډېرو ستونزو سره مخامخ وه. خو د هند په هغه اړي ګړي کي د ځان ساتني لپاره يې ډېر په هنر او استقامت چلن کاوه.

د اس د سورلۍ، پوځي تربيت او د جنګ د فن او په دې کي د برياليتوب لپاره يې زده کړه پيل کړه. دا په عقيده ټينګه مسلمانه مېرمنه وه. خو دا خبره يې نه منله چي ښځه د رياست مشره کېدای شي. هغې دا ويل چي د ښځې مخنيوي لپاره خلکو له اسلام نه ناوړه ګټه اخيستې ده.

د قدسيه بېگم لپاره د خپل پلار د عېش خوښونکي شخصيت او د مور مېړانه چې د جگړې په ډگر کې يې ښودلې وه ددې سوب شوه چې ځان ته خپله لاره وټاکي.

دا به د بهوپال په کليو بانډو کې گرځېده چې د عامو خلکو له حاله ځان خبر وساتي او په وړو پوځي مهماتو او معرکو کې به يې د عسکرو مشري کوله.

قدسيې بېگم چېرې هم د عېش وعشرت ژوند نه و تېر کړی. له ماشومتوب نه يې د جنگ سختي ليدلې وې. د هغې د لارې مشال د هغې خپله مور زينت بېگم وه. خو د پښتنو په تېر کې ځينو خلکو اوس هم د نذرمحمد وصيت ته د شک په سترگه کتل. د خپلې ماشومې لور د سرپرستې په توگه د واکمنۍ په لومړنيو کلونو کې خپلو خپلوانو او انگرېزانو دواړو ته دا جوته شوه چې دا د دې مهمې دندې لپاره وړ او قابله ده.

هغه له اميرمحمدخان او د هغه له پلويانو نه هم په اند ښننه کې وه چې په دې انتظار وو چې کله به سکندر بېگم ځوانېږي او کله به منير د نوابۍ په گدۍ کښېني.

په بهوپال کې اوس په څرگنده پښتانه په دوو ډلو وېشل شوي وو او دواړو د يوه بل په فعاليتونو داسې نظر ساتلی و لکه يو باز چې يې په خپل ښکار ساتي.

***

ویلو. یوه زمیندار یا جاګیردار به له خلکو د مالیو راټولولو کار هم کاوه. په دې کې زیاتره مورثي وې. خو کله کله پاچا د انعام په توګه هم داسې جاګیرداري ورکولې.

جون پور داسې یوه زمینداري وه. له زمیندارۍ پرته د "وصل" په نوم هم یو انتظامي یونټ و. چې واړه او کوچني کلي به له ګاونډي نوابۍ یا راجه سره وصل وو. خو دوی به کله کله خپلواکه اختیارات هم لرل. شورپور او ګړوال د دې ښې بېلګې دي. په راجواړو او نوابیو کې هم دوه ډوله امتیازات ورکړی شوي وو. د نورو لویو ریاستونو په شان بهوپال او حیدرآباد هم داسې امتیازات لرل.

دې ته به یې ګن سیلیوټ یاني هغه چې د توپو سلامي لري. دا دود د انګرېزانو په وخت کې پیل شو. او هغه نواب یا راجه چې دوی به ډېر درناوی ورته کاوه هغه ته به یې د یوویشت توپو سلامي امتیاز ورکاوه. چې تر ټولو لوړ اعزاز و. تر ټولو وړوکی د درېو توپونو سلامي واله و.

دویم هغه ځیني وو چې د توپو سلامي امتیاز یې نه لرلو. په دې کې بسوده (چې د پښتنو ریاست و). نواب ګنج او خیرګړ غوندې ځایونه شامل وو. د یوویشت توپو د اعزاز ریاستونه یوازې پنځه وو. چې د حیدرآباد نظام. میسور مهاراجه. جمو او کشمیر په کې شامل وو. مهاراجه او د بړوده ګایک مهاراجه او د ګوالیار مهاراجه سندهیا وو.

د نولس توپو سلامي به د بهوپال (د پښتنو نواب). د اندور او اودې پور راجه ګانو ته ورکول کېدې. په دې کې هم فرق دا و چې ځیني موروثي او ځیني موقتي وو. هغه وخت د مځکې او شمېر له حسابه د مسلمانانو تر ټوله لویه نوابي د حیدراباد دکن وه چې واکمن

د يوې مسلماني او په تېره بيا پښتنې ښځې لپاره د نولسمې پېړۍ په پيل کې واکمن کېدل اسانه کار نه و. هغه هم په داسې حالاتو کې چې په کور دننه او د باندې ورته د مخالفانو ډلې ناستې وې. قدسيه بېګم د پردې او ستر ساتلو سره د بهوپال چارې پر مخ بېولې او په دې انتظام کې د هغې مرسته هم هغو اميرانو او مشاورينو کوله چې د ښځې مشري ورته عيب نه ښکارېده. په دې مشاورينو کې پوه او مسلکي خلک شامل وو چې درې تنه په کې مهم وو. راجه هشونت راى، بهادر محمد خان (بخشي بهادر) او شهزاد مسيح (فرانسوي نژاد).

د شهزاد مسيح د کورنۍ کيسه ډېره په زړه پورې ده. "په ۱۷۴۰ م کې چې د ايران نادرشاه افشار په ډيلي حمله وکړه او دا يې ويجاړ کړ، نو په دې وخت کې د مغولو له دربار نه يوې فرانسوي کورنۍ لومړۍ ګواليار او وروسته بهوپال ته پناه يوو وړه. ددې کورنۍ مشر سيلواډور بوربن نومېده. په بهوپال کې دې کورنۍ ماموله بايي ته ځان ورسولو چې د دوست محمدخان د لمسي فيض محمدخان کونډه وه. ماموله بايي بوربن ته مځکې ورکړې او کله کله به يې د حکومتي کارونو لپاره ترې مشورې اخيستې. سيلواډور يو ډېر ځيرک او پوه انسان و او تر ډېرې مودې يې د بهوپال د نوابې کورنۍ خدمت کاوه. دى وزير محمد خان ته هم نژدې و او په بهوپال کې ده د عنايت مسيح په نوم شهرت لرلو.

د بهوپال د محاصرې په وخت دى له خپل زوى بالتازار، چې د شهزاده مسيح په نوم پېژندل کېدو. يو ځاى د نذرمحمد خان په پوځ کې د مرهټه وو پر ضد جنګېده.

کله چې قدسيه بېګم د خپلې لور لپاره د نوابۍ دعوا وکړه نو له پېرنګيانو سره د خبرو اترو لپاره به شهزاد مسيح د هغې د استازي په توګه ورتلو. د قدسيې بېګم د نوابۍ په لانجه کې شهزاد مسيح (بالتازار) د هغې په ملاتړ ودرېد او له انګرېزانو سره د خبرو اترو لپاره د بهوپال د نوابۍ په استازيتوب ورتلو. قدسيې بېګم پر ده لوی باور درلود. همدا و چې د پښتنو تر منځ داسې کنګوسې راپورته شوې چې ګوندې شهزاد مسيح له قدسيې بېګم سره اړيکې لرې.

شهزاد مسيح يو لوستی پوځي و او په انتظامي معاملو کې يې ساری نه لرلو. هغه اردو او فارسي ژبې رواني ويلې او د فطرت په نامه يې شاعري کوله. يو فرانسوی ليکوال او هند ته سفر کوونکې ويتولادي ګولېش پخپل کتاب "د هند نوابي سلطنتونه"کې ليکي کله چې "قدسيې بېګم د بهوپال نوابي ترلاسه کړه، نو دا او شهزاد مسيح يوه بل ته د مينانو په څېر نږدې شول."

په دې وخت کې د بوربن کورنۍ دومره قوي شوه چې نيم بهوپال يې په لاس کې و او که دوی انګرېزانو ته غږ کړی وای کېدای شي هغوی ورته د بهوپال نوابي ورکړې وای. خو شهزاد مسيح داسې ونه کړل او قدسيه بېګم په امر يې د ډيلي له يوې انګرېزې نجلۍ ازابېلا سټون سره واده وکړ. قدسيې بېګم د شهزاد مسيح مېرمنې ته "د سرکار دلهن" خطاب ورکړ او په بهوپال کې د جهانګير آباد په سيمه کې يوه کېتوليک کليسا، هديره او يو ښوونځی د دې په نامه ونومول شول. په دې سيمه کې د يوه پخواني کور کنډوالې اوس هم شته دې چې ورته د "سرکار دلهن حوېلي" وايي.

قدسيه بېګم د بهوپال د چارو، حکومتي کارونو او له انګرېزانو سره د معاملو سره سره پخپله کورنۍ کې د ننه له مخالفتونو سره

مخامخ وه. هغې د ماشوم منير محمد پالنه هم کوله چې خپل لوی مخالف ياني د خپل لېوره امير محمد په مقابله کې يې ترې برمته نېولی و.

منير محمد او د قدسيي بېگم لور سکندر بېگم د هغې تر سيوري لاندي لوييدل. اميرمحمد به انگرېزانو ته دا خبره يادوله چې د تخت اصلي وارث دده زوی منير دی او پکار ده چې دی دې واکمن اعلان شي. منير چې زلموټی شو، نو دی هم د پلار او د کورنۍ د نورو سړيو فکر ته اوښتی و. دا خبره به ثل کېده چې د ښځو واکمني غېر اسلامي کار دی.

قدسيي د وخت واگې په خپل لاس کې نيولې وې. د امير محمد د اغېز کمولو لپاره يې له انگرېزانو نه يوه بله خبره هم په سند ليکلې واخيسته. هغه دا چې د منير او سکندر بېگم تر نکاح وروسته او په دې حالت کې چې که د هغې لور خپل مېړه ته نوابي پرېښوده نو امير محمد به د بهوپال په حکومتي چارو کې د مداخلې هېڅ حق نه لري. خو بل لوري ته به هغې له اميرمحمد خان سره ښه اړيکې ساتل. هغه ته به يې ويل:

"ته زما له انتظام نه دومره بدگومانه يې چې د دوو ماشومانو په واده دې زور راوړی دی. دوی تر اوسه ځانونه نشي سنبالولی نو ملک به څنگه سنبال کړي. لږ نور انتظار وباسه."

خو امير محمد خان به په دې نه قانع کېده. د بهوپال غوندې ښېرازې مځکې واک يې د خپلې ورېنداري په لاس کې نه شوی زغملای. اخر ده د خپل اوښي اسد سره د قدسيي بېگم له واکه د لرې کولو يو سازش جوړ کړ. دوی د اورکزيو ځينې غړي او د روهيله پښتنو ايله جاريان له ځان سره مله کړل او د قدسيي د وژلو لپاره يې

له یوه پټ مرکز نه د حملې پلان جوړ کړ. په دې سازش کې منیر محمد هم شامل و. خو قدسیې بېگم تر دوی زیات قوي استخبارات لرل. د دوی پوځ هغه مرکز محاصره کړ چې مخالفو یې مورچې پکې نیولې وې. په بهوپال کې کورنۍ جګړه پیل شوه. دواړو غاړو تر څلورو ورځو پر یوه بل ډزې کولې او اخر د بهوپال پوځ ددې سازش خاتمه وکړه. یو څو کسان په کې ووژل شول. کشران یې ونیول او منیر محمد یې لاس تړلی قدسیې بېگم ته حاضر کړو. منیر د هغې په پښو پرېوتو او معافي یې وغوښته. قدسیې بېگم دی وبښلو. خو امیرمحمد او اسد یې له درباره منع کړل. دا دیوې ښځې هغه انصاف و چې د خپل سر دښمنان یې ژوندي پرېښودل. انګرېزانو له دې جنګه وروسته د قدسیې بېګم د ساتنې لپاره د خپل پوځ یوه ډله هغې ته ور واستوله.

قدسیه بېګم اوس پوه شوې وه چې ددې مخالفان به کله هم دا ارام ته نه پرېږدي. په ۱۸۲۷ م کال کې چې سکندر بېګم اوس هم د ۱۰ کالو وه. قدسیې بېګم دا خبره اعلان کړه چې منیر ناځوانه دی. د یوې مسلمانې ښځې له خوا ددې خبرې ډنډوره کول ډېر عجیبه کار و. منیر د هغې تر سیوري لاندې لوی شوی و او په نوابي کورنۍ کې به نرښځي (هیجړاګان) خدمتګاران وو.

دوی به د هلکانو او جینکو دواړو د ځوانۍ او پېغلتوب له عادتونو خبر وو او قدسیې چې دا خبره وکړه نو مانا یې دا شوه چې منیر محمد به اولاد نشي زېږولی. امیر محمد ددې خبرې په اورېدو سره د خپل کشر زوی جهانګیر لاس وروړاندې کړ. انګرېزانو هم دې خبرې ته غاړه کېښوده او قدسیې ته درې کاله نوره موده پاتې شوه، چې جهانګیر د نوابۍ لپاره وروزي. ځکه دی له منیر نه هم درې کاله کشر و. په ۱۸۳۰ کې د انګرېزانو استازی لانس لوټ وبلیکنسن

وتاکل شو. دی ۱۱ کاله په بهوپال کې پاتې و او په دې ټوله موده کې یې د قدسیې د واک مخالفت کاوه. د هغه نقادان وایي چې ده ته به د امیرمحمد خان د ډلې له خوا ډالۍ ورکول کېدې. دی به له هغوی سره په ښکار تلو. خو د هغه پلویان په دې نظر دي چې ده له انګرېزانو د هغه تړون درناوی غوښت چې قدسیې ورسره کړی و او هغه د واک انتقال و. جهانګیر په دې وخت کې د ۱۵ کالو و خو د قدسیې ځواب دا و، چې تر څو جهانګیر د ۱۹ یا ۲۰ کالو نشي دا به ورله سکندر په نکاح کې ورنه کړي. په ۱۸۳۲ م کال کې قدسیې بورقه وغورزوله. په دې کار هغې خپلې لور سکندر ته هم لاره هواروله ځکه هغې دا تجربه کړې وه، چې د پردې شا ته حکومت کول ګران کار دی. یو کال وروسته قدسیې انګرېز ګورنر جنرل ته لیک ور واستولو او تر ۱۰ نورو کلونو پورې د خپل واک غزېدل وغوښتل چې تر څو جهانګیر او سکندر د حکومت په کارونو پوه شي. انګرېزانو دا خبره رد کړه او سمدلاسه یې غوښتنه وکړه چې د جهانګیر او سکندر نکاح دې وشي.

قدسیه په دې خبره په قهر وه خو هېڅ یې نشو کولای. جهانګیر اوس د ۲۰ کالو و او سکندر بېګم د ۱۸ کالو وه. هغې د اس د سپرلۍ، د ښېزې، تورې او غشي د ویشتلو تر څنګ د قرآن تعلیم او د فارسي او پښتو ژبې زده کړې وې. خو په وجود کې تکړه او زړوره وه. تر ټولو مهمه خبره دا وه چې د هغې له جهانګیر سره مینه پیدا شوې وه. خو قدسیه بېګم بیا هم د لور په واده کې زړه نازړه وه. اخر امیرمحمد بیا تورې ته لاس واچاوه او د جنګ خطر پیدا شو نو قدسیه رضا شوه.

قدسیې بېګم نژدې ۱۸ کاله د خپلې لور او د زوم د سرپرستې په توګه د بهوپال واک په لاس کې لرلو. د هغې شخصیت د بهوپال د

راتلونکيو واکمنانو لپاره يوه بېلګه وه. ددې په حکومت کې د بهوپال اقتصاد په خپلو پښو ودرېدو. دې د خپل شخصي خرڅ لپاره له خزانې څخه يوه پيسه نه اخيستله. کالي پتري يې نه کول. په طبعيت کې ډېره ساده او له غروره خلاصه ښځه وه. خو په ودونو کې به يې کله کله له نورو ښځو سره خپل غړ ورګډ کړو. ددې د وروستيو کلونو يو انځور پاتې دی چې پکې دا يوه لوړه او نرۍ مېرمنه ښکاري. په سربېې لوپټه او په سترګويې عينکې دي.

په بهوپال کې د موتي مسجد په نامه د جامع جومات تر جوړېدو وروسته يې د پرانستنې مراسمو ته ولاړه. خو په ټول وخت کې د دې لوی انګړ د يوې ونې سيوري ته ناسته وه او سترګې يې ټيټې نيولې وې. وروسته چې له دې پوښتنه وشوه چې ولې يې د دې دومره ښکلي جومات منارونو او ګنبدې ته نه کتل، نو دې وويل: "زه وېرېدم هسې نه ددې په ليدو سره به په ما کې غرور پيدا شي"

دا به د ښار په لارو کوڅو کې پلې ګرځېده. د غريبو خلکو کورونو ته به ناڅاپه وردننه شوه چې د هغوی حالت له نژدې وګوري. د مانۍ په چمن کې يې يوه لويه تلۍ اېښې وه او خلکو ته يې اعلان کړی و چې که هر څوک کومه ستونزه لري نو دا تلۍ دې وغړوي. ددې د مانۍ په وره کې هر ورځ دوه منه ۸۰ کيلو غنم اېښودل کېده. د سهارلمانځه وروسته به ضرورتمندو ته وېشل کېدل. په لومړي ځل يې د ښځو اوبو لپاره په بهوپال کې يو نل (پايپ) تېر کړ. د اورګاډي پټلۍ د غزولو لپاره يې له خپلو شخصي پيسو پانګه ورکړه. په مکه او مدينه کې يې د بهوپال د حاجيانو لپاره سرايونه واخيستل، چې اوس هم شته. په خپل باغ کې به يې له عامو خلکو سره ليدل. د هغوی ستونزې به يې اورېدې او مرسته به يې ورسره کوله. د رياست خزانه

او خپله شخصي پانګه يې ببله کړه. له خپلې مانۍ يې د لاسي ګنډلو کار پيل کړ. ښځې يې په کې په کار ولګولې او د خپل پخلنځي خرڅ به يې له دې پيسو پوره کاوه. ډېر ژر هغې د عامو خلکو زړونه وګټل. خلکو به يې ډېر درناوی او احترام کاوه.

## د قدسيې بېګم سياست

په ۱۸۳۵م کې سکندر بېګم جهانګير ته واده شوه او شپاړس کاله وروسته د امير محمدسره شوی لوز پوره شو. د دوی دواړو واده د دښمنو کورنيو تر منځ داسې يووالی و چې د مينې او محبت پر ځای په کې تربګني او رقابت ډېر و. له واده سمدستي وروسته انګرېزانو له قدسيې بېګم غوښتنه وکړه چې نوابي دې جهانګير ته وسپاري. خو قدسيې وويل: د هغې زوم لا تراوسه نوابۍ ته تيار نه دی. سکندرې او جهانګير چې ګډ ژوند پيل کړ، نو هغه خپل خاوند ته وفاداره شوه. او دې په خپله له موره وغوښتل چې واک دې د هغې خاوند ته وسپاري. د دواړو کورنيو ترمنځ اړيکي خرپړ وو. امير محمد په خپله دا باور درلود چې قدسيه به چېرې هم واک د هغه زوی ته نه پرېږدي. ده يو واري بيا د بغاوت جنډه راپورته کړه. د بهوپال له ښاره بهر سيهور نومي ځای کې يې مورچې ونيولې او پوځ يې وربرابر کړ. قدسيې ډېر په مېړانه دا جنګ وګټلو. خو اوس انګرېزانو ور ودانګل. د برتانيا د بهرنيو چارو وزير يو ليک قدسيې ته ورواستولو چې په کې يې په دې خبرې ټينګار کړی و چې هغه دې واک خپل زوم ته وسپاري. د قدسيې بې له دې نور وس ونه رسېد چې له بهوپال ښار نه د اسلام نګر کلا ته ولاړه شي. برتانيا هغې ته اته سوه او شپاړس کلي په جاګير کې ورکړل او د يولسو توپو د سلامي اعزاز يې هم ورکړ. په

۱۸۳۷ کې جهانګير محمد په يوه ځانګړي دربار کې د بهوپال نواب وټاکل شو. هغه له نواب کېدو سره سمدستي قدسيې بېګم ته پټمن د پوځ مشر بخشي بهادر محمدخان ته وړانديز وکړ. چې که د قدسيې بېګم له ملاتړه لاس واخلي نو لويې مځکې به په انعام کې ورکړي. بهادرخان ورته په ځواب کې وويل:

"زه په بد وخت کې د خپل مربيې سره نيمه وچه ډوډۍ خوړې شم خو د يوه ډارن او ناسپاله کس په خدمت کې د مال خاوند نشم کېدی."

ده له خپلو دوو زامنو صدرخان او باقي خان سره يو ځای خپلې توري د تيکو نه واپستلې او له هغې ډلې سره روان شول چې په کې قدسيه بېګم د اسلام نګر د کلا پر لوري روانه وه.

د جهانګير د نواب کېدو سره سم د بهوپال فضا بدله شوه. په مانيو کې د رقص او سرود محفلونه شراب او د مېلمستاوو دوران پيل شو. دی په خپله يو شاعر و او ارام ژوند يې خوښېده. د زمري ښکار. د نورو ښځو سره روابط او د شرابو څښل ورته عيب نه ښکارېدل.

ده په بهوپال کې يوه نوې سيمه د جهانګير اباد په نوم ودانه کړه. د پوځ لپاره يې چاونۍ او د ځان لپاره يې يوه نوې مانۍ جوړه کړه. سکندر بېګم به هره ورځ د خپلې مور قدسيې بېګم پوښتنې ته اسلام نګر ته ورتله. د جهانګير نواب په دربار او مېلمستيا کې به انګرېزان هم شامل وو.

سکندر بېګم به په هره موقع له خپل خاوند سره مله وه. يوه ورځ د انګرېزانو استازي ويلکينسن چې هر وخت به د جهانګير نه تاوېدو راتاوېدو. سکندر بېګم ته ورنږدې شو. د هغې د الماسو غوږوالې ته يې لاس يوړو او ويې ويل:

"بېګم صېب ستا کالي څومره ښايسته دي"

سکندر بېګم د ټولو خلکو په وړاندې ویلکینسن ته پر مخ یوه څپېړه ورکړه او په قهر یې ورته وویل:

''ویلکینسن صیب! ته نه یې خبر چې یوې پردۍ، مسلمانې ښځې ته لاس وړل د هغې سپکاوی وي.''

امیر محمدخان او د هغه د ډلې له خوا اوس دا سازشونه کېدل چې څرنګه سکندر بېګم له مېنځه یوسي. ځکه له قانوني پلوه دا نوابه وه او سره له دې چې جهانګیر په نامه د بهوپال نواب و. خو عامو خلکو اوس هم د قدسیې بېګم او د هغې د لور سکندر بېګم درناوی کاوه. د جهانګیر له لارې امیرمحمد خپله غوښتل چې واکمن شي. اخر یې خپل زوی دومره ولمساوه، چې خپله مېرمن ووژني. دده د واده درې کاله شوي وو. سکندر بېګم اوس حامله وه او په څو ورځو کې د ننه یې ماشوم کېده. دا به د شپې خپله کوټه کې یوازې ویدېده. جهانګیر به د خپل عېش و نوش له محفلونو د شپې ناوخته ورتلو.

یوه شپه سکندر بېګم د هرې ورځې په شان په خپل کې کټ ملاسته وه. هغې بهر د اس د راتلو غږ واورېدو. خوشاله شوه چې جهانګیر نن شپه د وخته کوټې ته ورروان و. د پښو ښکالو یې تر غوږو کېده. خو هغې د لوی کټ له پردو نه اندازه لګوله، راتلونکی د برنډې پر پوړو د ختلو پر وخت د برنډې پر څنډو بلېدونکي روغني څراغونه هم یو یو مړه کړل. نابېره سکندر بېګم پوه شوه چې د خاوند په جامه کې یې اجل راروان دی. هغې د چپرکټ له پردو کتل چې د هغې خاوند جهانګیر توره په لاس کوټې ته ورننوتو. دا ساه نیولې ملاسته وه. مرګ تر ښنه څو ګامه لرې و. په دې وخت کې هغې ځان په څادر کې تاوراتاو کړ او یو غټ بالښت یې په ځان کېښود. جهانګیرد تورې یو زورور ګوزار وکړو او د هغې په تېره څوکه یې په ګوته د تودو وینو



قدسیه بیګم



سکندر بیګم

احساس وکړو نو پوه شو چې د هغه اندازه سمه وه. ښځې له د توري یو ګوزار کافي وي. سمدلاسه یې پښې سپکې کړې او له کوټې ووتلو. بهر پیرادارن حیرانه وو چې جهانګیر نن شپه ببرته په اس کښېناستو او په تلوار له ماڼۍ ووتلو. خو ورسره د سکندر بېګم چیغې یې واورېدې او چې دوی دننه ورمنډې کړې نو ګوري چې د سکندربېګم کټ په وینو لړلی دی.

د توري ګوزار نیم په بالښت او نیم د سکندربېګم په مړوند او ملا شوی و. هغې د ملهم پټۍ امر وکړ او چې سپېدې چاودېدې نو د خپلو ساتندویانو په بدرګه د خپلې مور قدسیې بېګم پر لوري اسلام نګر ته روانه شوه.

په بهوپال کې ډېر ژر دا خبر خپور شو چې جهانګیر د شپې د خپلې مېرمن د وژلو هڅه کړې وه. په دې پېښې سره د عام ولس له سکندر بېګم او قدسیې سره نور هم زړه سوی پیدا شو.

د امیر محمد او غوث محمد د کورنۍ تر منځ هغه معمولي رسمي اړیکي چې پاتې وو په دې کړنې او عمل سره هغه هم له منځه ولاړل. اوس په جار دښمني پیل شوه.

په اسلام نګر کې د بخشي بهادر، محمدخان او قدسیې نور وفاداره امیران د مور او لور دواړو تر څنګ ودرېدل. له حملې دوه میاشتې وروسته د سکندربېګم لور وزېږېدله او نوم یې شاه جهان بېګم ورباندې کېښود.

اوس بهوپال عملاً په دوو برخو وېشل شوی و. مور او لور په اسلام نګر او جهانګیر له بهوپاله حکومت کاوه. قدسیه بېګم یو وارې بیا فعالعه شوه او انګریزانو ته یې داسې پېغامونه ورلېږل چې د هغې پر لور له وژونکي برید وروسته جهانګیر د واکمنۍ حق بایللی دی او

په "نظام" بدل کېده. له دې وروسته د مځکې له پلوه د مسلمانانو لويه نوابي د بهوپال هغه وه. چې بنسټ يې د اورکزيو يو تن دوست محمد خان ايښې و. دلته څلورو ښځو پرله پسې دوه سوه کاله حکومت کړی دی. ددې وړوکې سلطنت د پوځ لپاره به زياتره د صوبه سرحد او په تېره د قبايلي سيمو خلک روزل کېدل. د خلکو لپاره به دا هم نوې خبره وي چې په بهوپال کې اوس هم اپريدي. يوسفزي او ميرازي خېل پښتانه نه يوازې دا چې ژوند کوي ځينې په کې اوس هم پښتو وايي. ما ددې سيمې له ځينو کورنيو سره ليدلي او د هغوی د ژوند ژواک حال مې له نژدې اخيستی دی. دا کتاب د بهوپال مکمل تاريخ نه دی. يوازې د تېرو دريو سوو کلونو حال دی چې په کې دوه نيم سوه کاله د پښتنو مېرمنو او د دوی حالات بيان شوي دي. په وروستۍ برخه کې مې د بهوپال د اوسنيو پښتنو حال ليکلی دی. په دې لاره کې ما سره ډېرو خلکو مرسته کړې ده. په تېره بيا د وروستۍ واکمنې عابده سلطان زوی شهريارخان چې د خپلې کورنۍ په اړه يې ډېر معلومات راکړل.

بايد چې سکندر بېګم د بهوپال واکمنه اعلان کړل شي. خو د انګرېزانو استازي هم هغسې د جهانګير ملاتړ کاوه. د وخت په تېرېدو سره د بهوپال وضعه په خرابېدو شوه. د قدسيې هغه کارکوونکي چې د خلکو د ستونزو حلولو ته به تيار وو اوس د جهانګير خپلو خپلوانو په پيسو اخيستي وو. کله چې خزانه په تشېدو شوه نو ويلکينسن په دې وخت کې جهانګير ته خبرداری ورکړ چې خپل چلن دې سم کړي.

انګرېزانو د قدسيې بېګم غوښتنې ته ځواب ورکاوه چې په بهوپال کې ښځه نشي واکمنه کېدای. ددې په ځواب کې به قدسيې د برتانيا د ملکې ويکټوريه مثال ورکاوه چې د دومره لوی سلطنت د واکمنې په حيث انګرېزانو ته د منلو وړ ده نو ولې بيا په دې وړوکې نوابۍ کې د ښځې واکمني نه مني. په ۱۸۴۱ کې ويلکينسن مړ شو. نو د هغه پر ځای د انګرېزانو استازی هېنري ټرېوليان په بهوپال کې وټاکل شو.

نوي استازي له نژدې نه په بهوپال کې حالات وڅارل. د دواړو غاړو خبرې يې واورېدې نو په خپل رپوټ کې يې وليکل چې دوی د جهانګير په ملاتړ يوه ډېره غلطه تګلاره يا پاليسي خپله کړې ده. ده وار په وار جهانګير ته د هغه کمزورۍ په ګوته کړې او د اصلاح غوښتنه يې ترې وکړه.

په ۱۸۴۴ کې جهانګير د پښتنه ورګې په ناروغۍ اخته شو او ډېر ژر يې حالت خراب شو. خپل مرګ ورته نژدې ښکاره شو او خپلې مېرمنې ته يې ليک ورواستولو. د خپلې پخوانۍ مينې واسطه يې ورکړه او ورته يې وويل: که هغې ورسره ګډ ژوند کولی نو ده به د يوه

ښه نواب په توګه حکومت کړی وای. د هغه لور شاهجهان بېگم اوس د شپږو کالو وه.

سکندر بېګم چې دا لیک تر لاسه کړ، نو هغې خپل خاوند وښنلو. د خپل قتل سازش یې هم هېر کړ او له خپلې لور سره یو ځای له اسلام نګره بهوپال ته روانه شوه.

دې نژدې یوه اوونۍ د خاوند له کټ سره تېره کړه؛ هغه د خپلې ماشومې لور په لیدو ډېره خوشاله و. خو د اونۍ په پای کې د جهانګیر پلار او د هغه ماما له سکندر بېګم نه غوښتنه وکړه چې له دې ځایه دې ولاړه شي. د جهانګیر د ژوند وروستۍ شېبې وې او امیر محمد په دې پوهېدو که سکندر بېګم د جنازې پر وخت هلته موجوده وي نو د نوابۍ دعوه به وکړي. همدغه وجه وه چې خپله نږور او لمسۍ یې په زوره له ماڼۍ وویستلې. مور او لور دواړه په سرو سترګو په ګاډي کې کښېناستې خو نیمایي لاره کې خبرې شوې چې جهانګیر ساه ورکړه.

د هغه د مرګ سره سمدلاسه امیر محمد انګرېزانو ته دا ولیکل چې جهانګیر نارینه اولاد نه لري او حکومت د نارینه وو کار و، نو ځکه د نوابۍ حقدار او د خپل زوی وارث دی. دده له دې دعوې سره د اورکزیو په کورنۍ کې د دوست محمد نور لمسي هم راپورته شول او د خپل حق غوښتنه یې کوله. قدسیې بېګم یو واري بیا د خپلې لور د حق لپاره نوې استازي ته لیک ورواستاوه. د انګرېزانو له لیکنو داسې ښکاري چې دوی هغه وخت کې سره له دې چې د انګلستان او ټول هند واکمنه ملکه ویکتوریا وه خو په بهوپال کې یې د یوې مسلمانې ښځې واکمني نه پرېښوده. دوی د نوابۍ لپاره د قدسیې بېګم د ورور موعیز پوځدارخان پلوي کوله.

پـه ۱۸۴۵ کـې دوی اعـلان وکـړ چـې د بهوپـال نوابـه بـه اوه کلنـه ماشومه شاهجهان بېګم وي چې د خپل پلار وارثه ده.

دا چـې هغـه د اوو کـالو ماشـومه وه، نـو ځکـه د هغـې پـر ځـای د قدسيې بېګم تر ټولو کشر ورور موعېز پوځدارخان به د هغې لپاره فيصلې کوي ياني عملاً پوځدار خان واکمن و. خو سکندربېګم به د خپلې لور سرپرسته وي او پوځدار به په حکومتي معاملو کې له هغې نه مشورې اخلي. له دې فيصلې سره د اميرمحمد او د هغه د پلويانو دعـوو تـه د پـای ټکـی کېښنودل شـو. خـو د قـدرت او حکومـت تـږي اميرمحمد په دې فيصلې بيا توري ته لاس کړ. لښکر يې جوړ کړ او بغاوت يې اعلان کړ. خو په دې نه پوهېده چې اوس د هغه مقابله لـه ښځې سره نه بلکې انګرېزانو سره وه. پـه يـوه معمولي جنګ کـې يـې ماتې وخوړه او ګرفتار شو. انګرېزانو دی په بندي خانه کې واچاوه او هم هلته نهه کاله وروسته په ۱۸۵۴ کې مړ شو. قدسيه بېګم له خپلې لور او لمسۍ سره لکه د فـاتح پـه ۱۸۴۵ کـې د نـوابۍ ګـاډي کـې يـو واري بيا بهوپال ښار ته ورداخله شوه. د سړک دواړو غـاړو تـه خلـک ددې د هرکلي لپاره راوتلي وو.

پـه شـاهي مـانۍ کـې د سـکندر بـېګم او د پوځدارخان تـر سـيوري لانـدې حکـومتي کارونـه پيـل شـول. خـو انګرېزانـو تـه ډېـر ژر انـدازه وشوه چې په يوه تېکه کې دوې توري نه ځايېږي. سکندر انګرېزانو تـه وليکل: دا کار کول غواړي خو اختيار نه لري. انګرېزانو همدا خبره معلومه کړه او پوځدارخان يې له خپلې دندې لرې کولو ته اړ کړ.

×××

په ۲۷ جولای، ۱۸۴۷ کې د بهوپال په یوه ځانګړي رابلل شوي دربار کې د انګرېزانو استازي جې- ډي کنینګم د خپل حکومت له خوا اعلان وکړ چې سکندر بېګم به د بهوپال د نوابۍ سرپرسته او د خپلې نهه کلنې لور شاهجهان له خوا واکمنه وي. په دې اعلان سره د هغې د ۲۱ کالو د نوابۍ دوره پیل شوه. لومړیو دیارلسو کالو کې دا د خپلې لور شاهجهان سرپرسته وه او وروسته اته کاله یې خپله واک لاره.

سکندر بېګم اوس د ۲۷ کالو وه دا په وجود او شخصیت کې د خپلې مور قدسیې بېګم په څېر وه. د خپلې مور غوندې یې د ژوند ښې شېبې په کورنیو سازشونو، جنګونو او ځان ساتلو کې تېرې شوې وې. له وړوکوالي نه پوهېده چې پر اوږو به یې دروند پېټی ایښودل کېږي. دې په ماشوموالي کې د اس سپرلي، د تورې او نېزې وهل او د غشي ویشتلو تربیه اخېستې وه. د خپلې مور قدسیې بېګم په نوابۍ کې دې د پوځي ډلګیو مشري کوله او پوځي مهماتو کې به پخپله هم شریکه وه. دا هم د خپلې مور په شان د عقیدې ټینګه مسلمانه وه، خو پرده به یې نه کوله. په بهوپال کې دننه به یې مخ نه پټاوه. خو کله چې به په سفر تله نو د وریښمو سپینه بورقه به یې اغوستله، او د هغې له پاسه به یې د مرغلرو تاج هم ایښودلو. دې ډېر ساده ژوند تېرولو، خو په رسمي مراسمو او دربار کې لکه د نارینه نوابانو غوندې په دبدبه اورعب کښېناستله. له خپلو درباریانو سره به یې په سخته لهجه خبرې کولې او هېچا ددې په حضور کې سترګې نشوې اوچتولی.

د سکندر بېګم لومړی مهم کار دا و، چې هغې د بهوپال د پوځ کندړکونه رسمي کړل. له دې وړاندې به د اورکزیو د کورنۍ خانانو د خپلو ډلګیو مشري کوله او نظم به په کې نه و.

سکندر بېګم په لومړي ځل د پوځیانو د معاش سیستم معرفي کړ. د دوی لپاره یې بارکونه جوړکړل. د سپرو او د پلي لښکر ډلګۍ یې بېلې کړې او یوه منظمه توپخانه یې برابره کړه. د سرکاري وسلو د ثبت او ساتنې لپاره یې بېل وسله تون جوړکړ. هغې په خپله د پوځي رسم ګزشت (پرېډ) معاینه کوله. ددې دویم کار دا و، چې د بهوپال مځکې یې کچ کړې. بهوپال یې په درېیو انتظامي برخو ووېشلو چې هرې برخې کې یوویشت ولسوالۍ وې. د هرې ولسوالۍ حدونه یې وټاکل او په لومړي ځل د بهوپال په سرحدونو د ننبې ستنې ودرول شوې.

د هرې یوې ولسوالۍ یو ولسوال یا ناظم او عامل وټاکل شو او دوی ته به معاش ورکول کېده. د مالیې راټولو لپاره یې ۵۰ سپاره او ۵۰ پلي افسران وټاکل. د خپلې نوابۍ په لومړي یوکال کې دننه هغې د بهوپال ۳۰ لکه روپۍ پور پرې کړ، چې زیاتره پیسې ددې خاوند د خپلو خرڅونو لپاره اخیستې وې.

دې د لومړي ځل لپاره د پولیس نظام هم جوړکړ، چې لرې پرتې سیمې به یې اداره کولې. ددې برسېره یې د ګمرک (محصول) او استخباراتو څانګې رامنځ ته کړې چې دې ته به یې د مځکو د حاصلاتو او د عامو خلکو د مشکلاتو خبرونه راوړل. دعدلیې نوی سیستم یې معرفي کړ، چې په کې قاضیان او وکیلان یې له بهوپاله بهر له نورو سیمو راوغوښتل. ددې هدف دا و چې خلکو سره انصاف وشي. د عدالت او قاضي د فیصلې پر ضد د اپیل حق هم خلکو ته

ورکړی شو. قوانین یې داسې جوړکړل چې د هندو او مسلمان د دواړو خیال په کې ساتل کېده.

د سکندر بېګم په نوابۍ کې په بهوپال کې د لومړي ځل لپاره خپله سیکه جوړه شوه او د ډاک (پوست) نظام معارفي کړی شو. چې له بهوپاله بهر یې هم دفترونه لرل. دې د لومړي ځل لپاره د محاسبې مشر وټاکلو، چې د ټولو ادارو حساب کتاب وګوري او د فساد او رشوت مخه ونیول شي. د هغې اصلاحات په درېو ځانګو کې شوي وو. سیاست، تعلیم او حکومت.

په بهوپال کې لومړۍ ولسي جرګه یا مجلس ددې په وخت کې جوړ شو چې د یوه ټاکلي پارلمان دنده یې پر مخ بیوله. په دې پارلمان کې بېلا بېلو مذهبونو او د سیمو خلک چې پکې سپین ږیري، تعلیم یافته، بې تعلیمه، مذهبي او مسلکي هر ډول کسان شامل وو. دې شورا به قوانین جوړول او پر ستونزو به یې ازاد بحث کاوه. چې هغه وخت یو ډېر پر مختللی ګام و. دغې شورا د بیان د ازادۍ قانون جوړ کړ او په ډېرو رایو سره ومنل شو. دې شورا له ۱۸۴۷ نه تر ۱۸۲۴ پورې ۱۳۴ قوانین جوړ کړي وو.

د تعلیم په ډګر کې یې نه یوازې د هلکانو او نجونو ښوونځي جوړ کړل، بلکې له یمن او سعودي عربستان نه یې استاذان او عالمان راوبلل، چې د نواب کورنۍ ښځو او سړیو ته به یې د قرآن او حدیث درس ورکاوه. د استاذانو د هستوګنې لپاره وړیا ځایونه جوړشول او له دې پرته ورته مځکې او نغدې پیسې هم ورکول کېدې. د سکندر بېګم په امیرانو کې یو تن مولوي جمال الدین نومیده چې د هغې د لور شاه جهان بېګم اتالیق و. په دې دور کې د بهوپال رسمي ژبه د فارسي پر ځای اردو وټاکل شوه.

د حکومت او اداري په ډګر کې یې د بهوپال ښار سرکونه پراخه کړل چې د اس ګاډي پکې تېرېدای شوی. د شپې په لارو کوڅو کې په هر پنځوس مېټره واټن کې د تېلو څراغونه بلېدل. د هندوانو او مسلمانانو لپاره یې بېل بېل سرایونه جوړ کړل. د یو لوی روغتون او بې شمېره ورو کلېنیکونو برسېره یې د وګړو د روغتیا لپاره قانون جوړ کړو او حکیمانو ته امر وشو چې د هندوانو او مسلمانانو لپاره دې د هغوی د مذهبي حساسیت په احترام بېل بېل داروګان جوړ کړي. ددې په دور کې د لومړي ځل لپاره د پور ورکولو سیستم پیل شو. خلکو به له حکومته پور واخیست او وروسته به یې په اسانو قسطونو پرې کاوه. د حکومت له خوا د ځنګلونو یوه څانګه هم پرانستل شوه چې د چاپېریال ساتنه وکړي او په ناقانونه توګه د ونو پرېکولو مخه ونیسي. په دې وخت کې له نور هند سره د بهوپال، د مځکې له لارې د نښلولو لپاره د اورګاډي پټلۍ په جوړېدو لاس پورې شو. خو هغه د اورګاډي لیدو ته ژوندۍ پاتې نه شوه. لومړی اورګاډی په ۱۸۸۲ کې د خاني انجن سره راغی.

## د سکندر بېګم مشکلات

د سکندربېګم کورنۍ ته وفاداره د پوځ مشر بخشي بهادر محمدخان مړ شو، نو د ده مشر زوی صدر محمد د پوځ د قومندان وظیفه ترلاسه کړه. خو دوه کاله وروسته صدر محمد هم په ځوانه ځوانۍ کې مړ شو او د پوځ مشري د ده کشر ورور باقي محمد ته وسپارل شوه. قدسیې او سکندر د نورو خپلوانو په پرتله د پښتنو په دې کورنۍ ډېر زیات اعتماد کاوه. ددې کورنۍ غړیو د قدرت او

واک پر ځای مسلکي جنګ او د دوست محمد له کورنۍ سره د پټ پاللو لاره خپله کړې وه.

د سکندر بېګم لور اوس د پېغلتوب په درشل کې وه. سکندر بېګم له انګرېزانو نه هم هغه ژمنه ترلاسه کول غوښتل چې یو وخت د دې مور قدسیه بېګم د خپل خاوند نذرمحمد له مړینې وروسته غوښتې وه.

دوا ړو مېرمنو انګرېزانو ته دا ښودله چې دوی د حکومت کولو وړتیا لري. سکندر بېګم لیدل چې د انګرېزانو استازی هومره مخالف نه وو، لکه ویلکینسن چې وو. تر ټولو مهمه خبره دا وه چې د برتانیا پر شاهي تخت یوه ښځه ناسته وه. په دې حالاتو کې سکندربېګم د لیک له لارې له انګرېزانو سره اړیکې ساتلې وو او د خپلې لور شاهجهان بېګم د نواب کېدو په لړ کې یې خپل شرایط وړاندې کړل. په دې کې تر ټولو مهم شرط دا و چې د شاهجهان بېګم له واده وروسته به د هغې خاوند نه یوازې دا چې نواب نه وي بلکې انتظامي اختیارات به هم نه لري. د ببلګې په توګه یې ورته د ملکې ویکټوریې د خاوند شهزاده البرټ نوم ولیکلو. دویمه دا چې د شاهجهان بېګم لپاره د یوه مناسب خاوند غوره کوله اختیار به یوازې د سکندربېګم په لاس کې وي او دریېم دا چې سکندربېګم به تر مرګ پورې د خپلې مځکې نوابه وي. په دې لیکونو کې سکندربېګم د ملکې ویکټوریه نوم بیا بیا یاداوه، مانا یې دا وه چې که انګرېزانو ته یوه ښځه واکداره عیب نه دی نو باید د بهوپال لپاره هم عیب و نه ګڼل شي.

په ۱۸۵۴ کې چې شاهجهان بېګم د ۱۲ کلونو شوه، نو د هغې لپاره د خاوند په لټون سکندربېګم د ټول هند د ببلا ببلو پښتنو کورنیو او قبیلو ۱۲ زلمیان هند ته راوبلل. د دوی ښې مېلمستیاوې

وشوې او ځينې په کې د ځو ورځو وروسته ولاړل. په اخر کې يوازې شپږ ځوانان پاتې شول چې ټول د دوست محمد خان د لمسو اولادونه وو. سکندربېگم دوی هم رخصت کړل او انګرېز استازي ته يې وليکل. په دوی کې يو ځوان هم زما د لور ور نه دی. دا چې سکندر بېگم ولې دا کار وکړ. لومړی خو دا چې هغې انګرېزانو ته ښودل چې دا د خپلې لور شاهجهان خوښې ته هم ګوري. کله چې دې ۱۲ زلمي بهوپال ته راوبلل، نو انګرېزانو ته يې دا وليکل چې هغه غواړي د دې لور په خپله ځان ته مېړه خوښ کړي او په دې خبره کې يو څه حقيقت هم وو. ځکه له ځينو ځوانانو سره شاهجهان بېګم د ليکونو له لارې د مينې لنډمهالی تعلق هم پاتې شوی و. ډېر ځوانان يوازې په دې حرص بهوپال ته ورغلي وو چې له يوې ښکلې او ځوانې شهزادګۍ سره به هم واده وکړي او د مسلمانانو د يوې پراخې نوابۍ واکمن به هم شي.

ان تر دې چې په دې ځوانانو کې د مغول واکمني کورنۍ يو شهزاده هم شامل و. اورکزيو ځوانانو خو دا خپل حق ګاڼه. خو سکندر بېګم نه غوښتل چې هغه خونړی تاريخ بېرته تکرارشي. د واک پر سر د هغې په خپل ژوند تېرې د هغې ياد و. په ۱۸۵۴ کې سکندربېګم د خپلې مور قدسيې سره د سلا مشورې وروسته د بهوپال د پوځي ځواک مشر سردارباقي محمدخان چې د بخشي بهادرمحمدخان زوی و خپل دربار ته راواباله او هغه ته يې امر وکړ چې له شپاړس کلنې شاهجهان سره دې واده وکړي. باقي محمد په دې خبره حيران پرېشان پاتې شو. سکندر ته يې زارۍ وکړې چې دی د بهوپال يو خدمتګار دی او نشي کولای چې په شاهي کورنۍ کې وردننه شي. دويمه دا چې هغه لا پخوا دوه ښځې او له هغوی څخه يې اولادونه لرل.

هم په دې ورځ باقي د سپينو زرو په يوه طشت کې سکندربېګم ته د وېښتو رنګولو بوتل، مصنوعي غاښونه او عينکې ورواستولې. دا د دې خبرې نښه وه چې دی زوړ او شاهجهان ځوانه وه. خو په سکندر يې هېڅ اثر ونه کړ. هغې لا پخوا دا فيصله کړې وه. باقي ته يې ډېر په سختۍ وويل چې کله د انګرېزانو هوکړه (رضايت) ورته راشي نو سمدستي به واده وي.

سکندر او قدسيې ولې دا فيصله کړې وه؟ دوی نه غوښتل چې د جهانګير په شان يو وارې بيا په خاندان کې تربګني پيدا شي. د خپلې کورنۍ په خلکو دوی دواړو اعتماد نه کاوه. بهرني د دوی لپاره د منلو وړ نه وو. د دوی يو داسې کس په کار و چې بهوپال ته وفاداره او بې غرضه کس وي. انګرېزانو په دې هېڅ اعتراض ونه کړ. هغوی د سکندر او قدسيې د کورنۍ تاريخچې نه خبر وو. دوی د شاهجهان په تخت د کښېناستو لپاره ۲۱ کاله عمر وټاکلو. د شاهجهان بېګم او باقي محمدخان په ۱۸۵۵ کې واده وشو او په دې موقع باقي محمد ته د امراولدوله خطاب ورکړی شو. د دې سربېره هغه ته په بهوپال کې د توپو د سلامۍ، لوی جاګير، يو فيل او د پالکي اعزازونه هم ورکړی شول.

(پالکی هغه ډولۍ ده چې نوابان به په کې له يو ځايه بل ځای ته تلل او څلورو مزدورانو به اوچتوله.)

سردار باقي محمد د اورکزيو ميشتي خيل وو. دده کورنۍ د دوست محمد او په تېره بيا وزير خېلو ته ډېر خدمت کړی و. دی په هډ مضبوط او ټينګ سړی و. سهار به يې درې ساعته ورزش کاوه. بيا به يې شپږ سېره شيدې څښلې. په يوه لاس به يې د اوبو هغه ارهټ چلولو چې دوو غويانو چلاوه. وايي ده يو ځل يوه غرڅه په دواړو

لاسونو په هوا کې اوچت کړ چې ځلوړو کسانو نشو اوچتولی له شاهجهان بېگم سره د ده واده د اطمينان هغه ګړی وه چې دواړو قدسيې او سکندر بېگم له ډېرې مودې غوښته. خو په دې وخت کې له بهوپاله لرې په ډيلي او ځينو نورو ځايونو کې د انګرېزانو پر ضد د خپلواکۍ يو پاڅون پيل شوی و.

په ۱۸۵۷ کې د انګرېزانو خلاف يو پاڅون وشو. چې د هند خلک يې د خپلواکۍ جنګ او انګرېزان يې غدر يا بغاوت بولي. د دې پيل د ځينو هغو پوځيانو په بارکونو کې وشو چې د انګرېزانو چاونۍ په کې وې.

په دې وخت کې سکندر بېگم چې د انګرېزانو ملاتړ يې لاره. خپلو پوځيانو ته يې معاشونه زيات کړل او دوی ته يې امر وکړ چې د نورو سيمو د خلکو يا د پوځيانو په لمسون دې غوړونه ږدي. خو په بهوپال کې دريو ډلو په دې پاڅون د انګرېزانو پر ضد توري راپورته کړې. د يوې ډلې مشري فاضل محمد کوله. چې د دوست محمد کړوسی و او غوښتل يې چې په دې پاڅون کې سکندربېگم له واکه لرې کړي. دويم هغه پوځيان وو چې د انګرېزانو پر ضد وو او د دوی مشري ولي شاه او مهاوير په نامه دوو افسرانو کوله. په دوی کې هندوان او مسلمانان دواړه شامل وو. دوی خپل ځيني افسران هم په دې ځايونو کې ووژل. دريمه ډله مذهبي عالمان وو چې ددې پاڅون پر وخت يې فتواګانې ورکولې او د انګرېزانو پر ضد جنګ يې جهاد ګڼلو او د مغول پاچا بهادرشاه ظفر تر بېرغ لاندې يې د راټولېدو غږ کاوه. د پوځيانو بغاوت پنځه مياشتې جاري و. اخر دوی چاونۍ ونيوله او شاهي ماڼۍ يې چارچاپېره محاصره کړه. او غوښتنه يې وکړه چې سکندر بېگم دې دوی ته وسپارل شي. هغې خپل زوم امراولدوله

راوباله او غوښتنه يې ترې وکړه چې له پوخ سره دې خبرې وکړي او د حل لاره دې راوباسي. په دويمه ورځ د پوخ غوښتنه ومنل شوه د دوی معاشونه يې زيات کړل او سمدستي خطر لرې شو.

عجيبه خبره دا وه چې د پاڅون په لومړيو ورځو کې قدسيې بېګم خپله هم د هغه ياغي پوځيانو ملاتړ کاوه چې د انګرېزانو پر ضد راپاڅېدلي وو او هغوی ته يې شخصي پيسې هم ورواستولې. کله چې سکندر خبره شوه نو خپلې مور ته يې يو سخت ليک ورواستولو او د بهوپال لپاره په راتلونکې کې يې ددې عمل د نتيجو خبرداری ورکړ. قدسيې بېګم په دې خبره له بغاوته لاس واخيست. سکندر بېګم پوهېده چې که دا پاڅون کامیابه شي نو د دوی واک به هم له مېنځه ولاړ شي. بهوپال به نه د علماوو. نه پوځيانو او نه هم د فاضل محمد لاس ته ورشي بلکې دا به د دوی د ځواکمنو ګاونډيو مرهټو لاس ته ولوېږي او يا به په کې انارشي او ګډوډي جوړه شي. باقي محمد ورو ورو په سېهور کې پوځيان بېرته خپل لاس ته کړل. هغه وخت له ده سره د پښتنو هغه ډلې ملې شوې چې د اوسني صوبه سرحد نه يې راوستي وو. اخوا په ډيلي کې هم د مغولو پاڅون ناکامه شوی و. انګرېزانو اوس د هند ټول سلطنت په لاس کې لاره. د بهوپال باغيان هم تيت و پرک شول. فاضل محمد ونيول شو او غرغره يې کړ.

د بهوپال سرکاري سندونه ښيي چې په دې ټول پاڅون کې ۱۴۹ باغيان ووژل شول. د پاڅون کوونکيو دعوا دا وه چې د دوی ۳۵۲ غازيان يا غرغره شوي او يا هم په جنګ کې شهيدان شوي دي.

د انګرېزانو هغه ډلګۍ چې د بهوپال خوا او شا له حملو راتښتېدلې وې هغوی هم دغې سيمې ته کډه کوله. سکندر بېګم خپلو سردارانو

ته امر کړی و چې دوی دې په لویو کلاګانو کې وسا تل شي او د دوی تر څارنې لاندې دې وي.

وروسته بیا یو ځل له سکندر بېګم نه پوښتنه وکړه چې که انګرېزانو په دې جنګ کې کامیابي نه وای ترلاسه کړې. نو بیا به یې څه کول؟ هغې ورته په ځواب کې وویل: "په دې حالاتو کې د بهوپال پوځ دا خبره یقیني کوله چې دوی (انګرېزان) بې وسلې شي. {دا د سکندر بېګم هغه صلاحیت ښيي چې په یو سخت وخت کې د راتلونکې په اړه د پلان او تدبیر خاونده وه.}

د غدر یا د ازادۍ له جنګ وروسته د برتانیې سلطنت بهوپال ته نور مراعات هم ورکړل د منني پيغامونه. امتیازات او بادرۍ یې ورته اعلان کړې. په ۱۸۵۸ کې د شاهجهان بېګم او باقي محمد د واده درې کاله وروسته د دوی لور وزېږېده، چې سلطان جهان نوم یې ورته ورکړو. هغه وخت شاه جهان د شلو کالو وه. مور یې د ۴۰ او انا قدسیه بېګم یې د ۵۸ کالو وه. یو کال وروسته به دې د بهوپال د نوابۍ په توګه رسمي واک ترلاسه کاوه. خو سکندر بېګم غوښتل چې په خپله د واک په ګدۍ ناسته وا وسي. هغې د انګرېزانو استازي ته لیک ورواستاوه.

د هغې دلیل دا و چې سکندر بېګم د پنځلسو میاشتو وه چې د هغې پلار ووژل شو او ددې تر ځوانۍ یې مور واکمنه وه. بیا دا واده شوه نو خاوند یې نواب شو. او اوس چې دې په غدر کې خپل صلاحیتونه انګرېزانو ته ښودلي نو واک ددې پر ځای د هغې لور ته سپارل کېږي. چې تر اوسه د سیاست او واکمنۍ تجربه هم نه لري. په دې خبره برتانویان په مشکل کې بند شول. یوې خوا ته د سکندربېګم قوي شخصیت او د هغې د انتظام ښه والی و او بل لوري ته د دوی

خپل ترون او شرایط وو چې شاه جهان ته د مکملو اختیاراتو په ورکولو یې د ښځې پاچاهي منلې وه. هغوی سکندر ته د نوابۍ د سرپرستۍ لپاره ټول عمري اختیار ورکاوه. خو دې ورسره نه منل او پر دې به یې ټینګار کاوه چې دا به پخپله ټول عمري نوابه وي.

د انګرېزانو استازي رچمنډ شېکسپیبر بهوپال ته ورغلو او له شاه جهان بېګم سره یې یوازې د لیدلو غوښتنه وکړه. په دې غونډه کې شاه جهان هغه ته خپله فیصله واوروله. هغه دا چې د خپلې مور د نوابۍ لپاره په خپله خوښه له واکه لاس اخلي. په دې فیصله د انګرېزانو ستونزه حل شوه. دا فیصله انګرېزانو په ۱۸۶۰ کې په یوه رسمي دربار کې اعلان کړه او د لومړي ځل لپاره یوه مسلمانه ښځه سکندربېګم د بهوپال واکمنه او د هغې لور شاهجهان بېګم یې ځای ناستې شوه.

له دې اعلان سره سکندربېګم سمدستي یو څه ارامه شوه. په بهوپال کې اوس د هغې پښې ټینګې شوې. د دښمنانو له خوا هغه خطر کم شو چې هر وخت به ورسره و. اوس هغې کولای شو چې له بهوپاله بهر ووځي او د یو څه وخت لپاره اداري کارونه خپلې لور ته پرېږدي. د باقي محمد په موجودګۍ د پوځ له خوا هم بې غمه وه. هم دا حالات وو چې هغې د حج لپاره ملا وتړله.

په ۱۸۶۳ کال د نومبر په میاشت کې سکندربېګم له خپلې مور قدسیې بېګم او ماما مویز پوځدار سره یو ځای د حج لپاره مکې ته روانه شوه. دا سفر په دې لحاظ تاریخي دی چې تر دې وړاندې د هندوستان یو واکمن هم چې ښځې او نارینه دواړه په کې شامل وي، پخپلې واکمنۍ کې حج ته نه ووتللي. له هغې سره ۱۵۰۰ کسان مله وو. دا سفر لومړی په سړک بیا په اورګاډي او بیا په دریو سمندري

بېړيو ترسره شو. ددې لپاره په مياشتو مياشتو تياري شوې وې. په لويو سردارانو کې د هغې ديوان مولوي جمال الدين، د پوځ قوماندان يو شمېر وزيران، جاګيرداران، ډاکټران، نرسانې، ساتندويان، خانسامان (ډوډۍ پخوونکي)، نايان، دوبيان، ښځينه خدمتګارې، پياده او قاصدان او بې شمېره نور خدمت کوونکي شامل وو. دوی د کاروان په شکل د سړک له لارې په پيلانو او اسونو سپاره مهارګام ته ورسېدل. هلته په اورګاډي کې ممبۍ ته ولاړل او په ۱۸۶۴ م کال د جنورۍ پر شپږمه نېټه د سمندر له لارې جدې ته روان شو. يوه بېړۍ د خاني او دوه بادباني وې. ۲۰ ورځې وروسته دوی جدې ته ورسېدل. خو د دوی سفر له مشکلاتو او ستونزو ډک و.

جدې ته په رسېدو د ترکيې يوه والي (ګورنر) او د مکې معظمې شريف شيخ عبدالله بن محمد ابن عاون دوی ته د توپو په ډزو سره رسمي هرکلی وکړ. خو د دوی د دومره لويې ډلې راتلل او ځايول ګران کار و. په بندر کې د سکندر بيګم د قيمتي سامانونو د تلاشي په پلمه د هغې د لرګي يوه پېټۍ ماته کړی شوه او له هغې نه کالي او ګاڼې غلا شوې. د هغې په قيمتي سامان د ماليې غوښتنه وشوه. د سکندر بېګم د اوسېدو لپاره چې کوم کور ټاکل شوی و، کله چې دا هغه ته ور روانه شوه، نو ورته خبر ورکړل شو چې د مصر يو شهزاده راروان دی نو ځکه دا په هغه ځای کې نشي ايسارېدای. سکندر بيګم خپل ځان ته د استوګنې بل بندوبست وکړ. وروسته معلومه شوه چې د مصر شهزاده هېڅ رانغی.

له جدې نه مکې ته سفر هم له خطره ډک و. له کاروان سره د عثماني سلطنت يو استازی سليمان بېګ او د مکې د شريف ورور مله وو. چې ورسره عرب او ترک محافظان وو او د کاروان بدرګه يې کوله

سکندر بېګم سره په خپله د بهوپال ساتندويان هم وو. په دې سيمه کې د بهوپال د واکمنانو د شتمنۍ او سخاوت کيسې لا پخوا مشهورې وې. په تېره بيا قدسيه بېګم چې د خپل ګاډي نه به يې روپۍ بهر ته غورځولې او ددې په نتيجه کې به سوالګر هم پر دوی راټول شول. ددغسې خيرات په کولو سره سکندر بېګم څو ځلې خپله مور وترټله. خو هغې به نه منل. د عربستان د دښتو بدو قبايلو ته هم د دوی د شتمنۍ خبرونه رسېدلي وو او څو وارې په دې قافله حمله وشوه خو څه خاص تاوان يې ونه کړ.

يوه شپه د قدسيې بېګم اوښ ځينو بدوګانو په مخه کړو او نژدې دا تښتول شوې وه چې ددې په شور زوږ د بهوپال محافظانو ورپسې خپل اسونه وزغلول او د يوې لنډې جګړې وروسته يې دا وژغورله. مکې ته په رسېدو د شريف لخوا د هرکلي په توګه د بهوپال حاجيانو ته پنځوس ډوله خواړه د ورځې درې ځلې ورواستول شول. سکندر او قدسيې دواړو دا ډوډۍ ونه خوړه. په عربي نړۍ کې د چا ډوډۍ نه خوړل د هغه سپکاوی ګڼل کېږي. د مکې د والي غوږ ته دا خبره ورسېده او په دويمه ورځ شل ترک پوځيان د سکندر بېګم د کور پخلنځي ته ورننوتل او لوښي لرګي يې ورمات کړل. مولوي جمال الدين يې ووهلو او ګواښ يې وکړ چې دوی به هغه چا ته سزا ورکوي چې د شريف يا د والي سپکاوی وکړي. سکندر بېګم په دې پېښه خپل کوربه ته د احتجاج يو ليک ورواستاوه چې په کې يې ليکلي وو: هغې د يوه مسلمان سلطنت د واکمنۍ او د يوې مسلماني ښځې په توګه چې حج ته راغلې ده، د داسې چلند تمه نه لرله. شريف د روغې جوړې لپاره بيا د پنځوسو خوړو خوانچې ورواستولې او سکندر بېګم زړه نازړه دا ډوډۍ په خپله هم وخوړله او د خپلې ډلې په

نورو کسانو يې هم وخوړله. خو ورسره يې دا خبره هم په خپلو يادابنتونو کې ليکلې چې ډوډۍ خوندوره نه وه او يخه وه
په دې کارسره د دوارو ډلو ترمنځ روغه وشوه. شريف هغې ته بلنه ورکړه چې د ده په ماڼۍ کې د ده د کورنۍ له ښځو سره ووينې.
سکندر بېګم هم داسې وکړل او د دې ليدنې حال يې په تکي تکي ليکلی دی.
د هغې له يادښتونو معلومېږي چې په عربستان کې د هغې يوه خبره هېڅ خوښه نشوه. هغه دا چې ښځې يو مېړه پرېږدي او بل کوي. د يوې ښځې چې به له خاونده زړه تور شو نو والي ته به يې خواست وکړ. چې دا خلع اخلي. والي به دا ومنل، ښځې به يو بل واده وکړ. داسې به يوې ښځې درې څلور او ان پنځه مېړونه کړي او پرې ايښي وو. پر يوه بله خبره چې د هغې اعتراض و هغه په خپله د خانه کعبه او د مکې د ښار بده انتظاميه وه. ښار له ګداګرو او له هغو خلکو ډک و چې د هند له لويې وچې ورغلي وو. په دوی کې معيوب. شل شوټ، غله او داسې کسان شامل وو چې په خپلو ملکونو کې يې ځای نه لرلو.
سکندر بېګم د حج اداکولو وروسته بېرته بهوپال ته ورسېده. دې ټول سفر يوولس مياشتې واخيستې او د دې په غېرموجودګي کې د دې لور شاه جهان بېګم د بهوپال چارې پر مخ بېولې.



رای سین کلا



اسلام نگر

# لومړی ځپرکــــی

## دوست محمد خان

بهوپال ـ د هندوستان پښتانه

دا د ۱۸۵۴ کال و او په بهوپال کې د سکندر بېگم له خوا د عالمانو او د ديني استادانو ډېر هرکلی کېده. د هندوستان له ګوټ ګوټ نه به خلک هلته د کار روزګار موندلو لپاره ورتلل. هغه وخت د بربلي يو ۱۷ کلن ځوان سيد صديق حسن بهوپال ته کډه وکړه. دده پلار په عقيده شيعه وو. خو يو وخت يې اعلان کړی و چې دی له شيعه مسلکه سني عقيدې ته اوښتی دی. همدا و کله چې صديق حسن د پنځو کلونو په عمر کې يتيم شو نو د خپل پلار له وراثته محروم کړی شو.

بيا دده کونډې مور صديق ډېر په سختو او خوارو رالوی کړ. هغه د عربي او فارسي ژبې له زده کړې سره د قرآن او حديث علم هم حاصل کړ. دی چې د روزګار موندلو لپاره بهوپال ته ورسېدو. نو هلته يې په لومړي سر کې د خوشبويۍ (عطر) په خرخولو لاس پورې کړ. له دې سره سره به هغه د جمعې ورځ په يوه يا بل جومات کې خطبه هم ورکوله. په خطبه کې به يې د حنفي عقيدې پر ضد خبرې کولې او ډېر ژر خلکو د وهابي ټاپه وربانديې ولګوله. دی د سکندر بيګم له خوا په ۱۸۵۷ کال کې له بهوپاله وشړل شو. عامه خبره دا کېده چې ده له يوه مولوي سره مخالفت پيدا کړی و، خو په نوابي کورنۍ کې ويل کېده چې سکندر بېګم ډېر ژر په دې پوه شوه چې صديق حسن ښې ارادې نه لري او په بهوپال کې مذهبي شر راپورته کوي.

صديق حسن له بهوپاله د وتو وروسته د پښتنو يوه بل رياست ټونک ته مخه کړه. خو ډېر ژر د ۱۸۵۷ کال د مې مياشت کې غدر يا د خپلواکۍ پاڅون پيل شو او ويې ليدل چې هلته د انګرېزانو پر ضد د خلکو د راپورته کېدو څه امکان نه و، نو دی قنوج ته ولاړ. دده مور

او خور هغه وخت په قنوج کې اوسېدل. د غدر په دې کال او وروسته هم صدیق حسن کار روزګار نشو موندلی. نو یو واري بیا بهوپال ته ولاړ او دا ځل یې مولوي جمال الدین ولید، چې د سکندر بېګم د لور شاه جهان استاد هم و. مولوي نوابې ته د هغه سفارش وکړ او په خپل دفتر کې یې د منشي کار ورته وسپارلو. سکندر بېګم هغه ته د بهوپال د تاریخ لیکلو دنده ورکړه او د دې کار لپاره یې ورته پیسې هم ورکړې. صدیق حسن ډېر ژر خپله مور او خور هم بهوپال ته راوستل او یو کال وروسته په ۱۸۶۰ م کې مولوي جمال الدین خپله مشره لور چې کونډه وه او اولادونه یې لرل او له صدیق حسن نه یولس کاله مشره وه ورته په نکاح کړه. په دې واده صدیق حسن د خپل راتلونکي او له معاش نه بې غمه شو. د ده تګ راتګ د سکندر بېګم کورنۍ ته هم زیات شو او د خپل خسر له برکته یې ډېر ژر د اداري کارونو لوړو عهدو ته ځان ورسولو. دده تر ټولو لویه کامیابي د شاه جهان بېګم استاد مقررېدل و.

د شاهجهان لور سلطان جهان اوس د شپږو کالو وه. سکندر بېګم چې حج ته تللې وه نو په ټول سفر کې یې د بېلا بېلو ځایونو حال په لیک کې خپلې لمسۍ ته ولیکلو. شپږ کلنې سلطان جهان به د خپلې نیا (انا) لیکونو ته ځوابونه هم لیکل. دا د سکندر بېګم تر سیوري او روزنې له پروګرام سره سم تربیه کېده.

د هندوستان د ډېرو مسلمانو کورنیو دا دود و او په ځینو ځایونو کې دا دود اوس هم ساتل شوی دی چې ښځې د خپلې لور یا د زوی مشر اولاد لکه د خپل اولاد غوندې لویوي. په هغو ورځو کې چې جینکۍ به ډېرې وړې وې ودېدې نو په دې کار به هغوی د ماشوم د سمبالولو او د هغه له ساتنې بې غمه وې. سکندر بېګم د سلطان

جهان بېګم روزنه په خپله کوله. شاهجهان بېګم د خپلې مور او نیا په پرتله ډېر شاعرانه طبعیت لرلو. د هغې کالي پترې خوښبدل. د ژوند ښایسته شیان به یې ستایل. د هغې خاوند باقي محمد له هغې په عمر کې ډېر لوی و او دا هم د هغې د ناارامۍ یو سبب و. بلخوا سکندربېګم په خپل ژوند کې د سخت ډیسیپلین خاونده وه او له حج نه چې بېرته راغله نو د خپلې لمسۍ سلطان جهان د راتلونکي په اړه یې فکر شروع کړ.

په ۱۸۶۷ م کې امرالدوله (باقي محمد) د حج لپاره ولاړ خو کله چې بېرته د مصر له لارې په بېړۍ کې راتلو نو ناروغه شو او لږ ورځې وروسته مړ شو. د هغه مرګ د شاهجهان لپاره دومره د اندېښنې او خپګان وړ نه و څومره چې د سکندر بېګم لپاره و.

شاهجهان بېګم په ځوانه ځوانۍ کونډه شوه او سکندربېګم ته یو واري بیا په کورنۍ کې دننه سازشونه جوړ شول. سکندربېګم د خپلې لور شاهجهان بېګم له کړو وړو دومره خوشاله نه وه. هغه اوس د اوویشتو (۲۷) کالو وه. ۳۳ کلن صدیق حسن د هغې استاد و چې عربي او فارسي لوړې زده کړې یې ترې کولې. دوی د سبق نه علاوه په شعر او ادبیاتو هم خبرې کولې او په نوابي کورنۍ کې داسې ګنګوسې خورې شوې چې دوی د درس پر وخت نوکراني له هغه ځایه وباسي. د کورنۍ د ملازمانو له خوادا خبره هم وشوه چې یو ځلې سکندربېګم دا ښه ووهله او په کوټه کې یې بنده کړه. لکه چې شاهجهان بېګم شاعرانه طبعیت درلود او په ځوانۍ کې کونډه شوې وه، د هغې د ژوند هغه ارمانونه نه وو پوره شوي چې ددې د سن ښځې یې لري. سکندربېګم په خپله ځواني له خاونده لرې تېره کړې وه او د قدسیه بېګم په شان خپلې ارزوګانې یې پر کار او د خلکو په

خدمت کې لتېولې. خو شاه جهان رومانتيک طبعيت درلود. صديق حسن په داسې وخت کې ورسره مخ شو چې دې ته يوه جذباتي اډانه په کار وه. بل خوا صديق حسن لپاره شاه جهان يوه داسې مرغۍ وه چې په خپله دده لومې ته ورداخله شوه. سکندربېګم پر ځای ددې چې د شاه جهان بېګم د واده غم يې کړی وای د بهوپال سياست او ددې د راتلونکې په اړه يې فکرونه کول.

سکندر بېګم په دې هم ښه پوهېده که د هغې لور ښه واکمنه نه شوه نو لمسۍ به يې بې واکه شي. د دوست محمد په کورنۍ کې د هغې وربرونو او نورو ځوانانو اوس هم د بهوپال واکمنې غوښتله او تل به يې سازشونه کول. د دوی د خطر د مخنيوي لپاره سکندر بېګم له خاندانه بهر په يوسفزيو او پېروزخېلو کې د يوه مناسب هلک لټون پيل کړی و او په دې لړ کې هغې د لوهاري د سردارجلال خان کورنۍ ته خپل يو وزير ورواستاوه. دا هغه کورنۍ وه چې دوست محمد په کې پناه اخيستې وه. په ۱۸۲۲م کې د اګرې په دربار کې له ګډون وروسته سکندربېګم د اورکزيو ځينې ځوانان اګرې ته راوبلل چې په خپله يې وويني. په دوی کې يوه کونډه محمدي بېګم له خپل ۱۷ کلن زوی احمد علي خان سره ورغله. د احمد علي ښې تربيې پر سکندربېګم اغېز وکړو.

محمدي بېګم له خپلو دوو اولادونو احمد علي او چندا بي بي سره بهوپال ته کډه وکړه. د هغې په کورنۍ کې داسې څوک سړی نه و چې د هغې واکمنۍ ته يې خطر رامنځ ته کړی وای.

له اګرې نه بېرته د راتلو سره سکندربېګم ناروغه شوه او دوه کاله وروسته د ۵۰ کلونو په عمر کې مړه شوه. دا تر ۲۱ کالو پورې د بهوپال نوابه وه.

ددې د مړینې اوولس ورځې وروسته په ۱۸۶۸ م کال کې شاهجهان بېگم په دویم ځل د بهوپال نوابه اعلان شوه. په دې وخت کې دا اعلان هم وشو چې لس کلنه سلطان جهان بېګم به ددې ځای ناستې وي. شاهجهان د ۳۰ کالو وه. د دې خبرې امکان و که هغې دویم واده وکړو او زوی یې وشو نو د انګرېز او د اسلامي قانون تر مخې به د هغې ځای ناستی وي. خو سکندربېګم له مرګ وړاندې له انګرېزانو دا ژمنه اخیستې وه چې د هغې لمسۍ به راتلونکې حکمرانه وي. دویمه دا چې سکندربېګم غوښتل چې د بهوپال واک دې په اورکزیو کې پاتې وي. همدا وجه وه چې هغې د سلطان جهان لپاره یو اورکزی پښتون غوره کړی و.

کله چې شاهجهان نوابه شوه نو هغې صدیق حسن خپل مشر منشي اعلان کړ او په دې توګه به دوی دواړو یو بل سره لیدل. شاهجهان اوس ده ته د صدیق حسن پر ځای د صدیق حسن خان نوم اخیستو. مانا یې دا وه چې دی د یوه پښتون په توګه وروښایي. اوس د هغې پر سر د سکندربېګم غوندې مور هم نه وه چې ددې کړه وړه وڅاري. دا څرګنده وه چې د شاهجهان بېګم له صدیق حسن سره مینه وه او خپله صدیق حسن د هغې احساسات او ذهن دواړه په لاس کې نیولي وو.

د خپلې نوابۍ په لومړیو څلورو کالو کې شاه جهان د حکومت په کارونو کې ښه په لېوالتیا برخه اخیسته. د مالیو انتظام یې ښه کړ، د پولیس او پوستې سیستم یې ښه پر مخ یو وړ. د سپرو پوځیانو معاش یې زیات کړ. په خپله به د بهوپال لرې پرتو سیمو ته ورتله او د خلکو له حاله به یې ځان خبراوه. ددې په حکومت کې د بهوپال خاوره کچ شوه او سرشمېرنه یې وکړه. چې له دې حسابه هلته ۷۲۴۰۰۰ (اوه لکه څلور ویشت زره) خلک اوسېدل او دا په داسې حال کې وه چې

هلته د څو کلونو سوکړې (وچکالي) او يوواري د طاعون وبا ډېر خلک مړه کړي او بې شمېره نورو له دې ځايه کډې کړې وې

د وچکالۍ له کبله د مځکې حاصل کم شوی و. همدا وجه وه چې په بهوپال کې د اپيمو کر ته اجازه ورکړل شوه. خو ورو ورو ددې نوابۍ کلتور هم په بدلېدو شو. شاه جهان په خپله شاعره وه، آرټ، ادبيات او موسيقي يې خوښېدله. هغه دربار چې يوازې عالمان او مذهبي خلک ورته راتلل اوس د شاعرانو، ليکوالو، انځورګرو او سندرغاړو تګ راتګ په کې زيات شو. شاه جهان به ورله د دوی په تخليق انعامونه او مځکې ورکولې.

د شاه جهان لور د لسو کالو د وړوکي عمر نه خپله روزنامچه ليکله. او يو ځای ليکي چې د نيا (سکندربېګم) د مړينې نه وروسته چې يې له خپلې مور سره ژوند پيل کړ، نو ددې ورځنی مهال وېش چې پخوا ټاکل شوی و اوس نيمايي ته راولوېد.

د سکندربېګم په وخت کې د سلطان جهان لپاره دا مهالوېش ټاکل شوی و:

سهار له پنځو نه تر شپږو بجو ـ ازاده هوا کې ورزش

اتو نه تر لسو بجو ـ د قران زده کړه

دولس نه تر يوې بجې ـ خطاطي او ليکنه

دريو نه تر څلورو ـ انګرېزي درسونه

څلورو نه پنځو بجو پورې ـ حساب

پنځو نه تر شپږو بجو ـ پښتو او د نورې تربيه د اس سپرلي

خو شاهجهان بېګم دا مهال وېش بدل کړ.

سهار له اوو بجو نه تر نهو ـ د قران درس

د غرمې له دوو نه تر څلورو ـ د سرکاري اسنادو مطالعه ورپسې ټول وخت د تفريح لپاره

سلطان جهان له وړوکي عمره ليدل چې صديق حسن ددې پر کوندې مور څومره اغېز لري او دا يې هم احساس کړی و چې د هغه له کبله يې له خپلې مور سره واټن او لريوالی پيدا شوی و. د دوی په سرکاري استوګنځي کې د شعر و شاعرۍ او موسيقي په محفلونو کې به صديق حسن هرو مرو موجود و.

په ۱۸۷۱ م کال کې چې سلطان جهان د ديارلس کالو وه هغې د قرآن کريم زده کړه پای ته ورسوله او له رواج سره سم شاه جهان بېګم د خپلې لور لپاره د نشرح محفل جوړ کړ. او تر څلوېښتو ورځو پورې په بهوپال کې ددې خوشالي ولمانځل شوه.

صديق حسن له هغې ورځې راهيسې چې شاه جهان په رسمي توګه نوابه شوه، قدرت ته د رسېدو لپاره لاس وپښې وهلې. دده لومړی کار دا و چې خپل خسر مولوي جمال الدين يې له حکومتي کارونو لرې کړ. په شاه جهان بېګم يې دومره اغېز پېدا کړ چې ځان يې مدارالمهام (مشر وزير) کړو. عجيبه خبره دا وه چې د صديق حسن مېرمنې ذکيه بېګم ددې هر څه ملاتړ کاوه. هغه اوس پنځوس کلنه وه او خپل خاوند يې دې ته هڅاوه چې له شاه جهان بېګم سره واده وکړي.

صديق حسن په بهوپال کې د انګرېزانو استازي مېجر اېډورډ تامسن ته يو پټ خبر ور واستولو چې شاه جهان بېګم سره په جنسي اړيکو کې هغه حامله کړې ده. او هغه يې په دې قانع کړ که شاه جهان بېګم ژر له ده سره نکاح ونه تړي نو دا به د بهوپال لپاره يوه لويه بدنامي وي. انګرېزانو دا خبره ومنله او د دوی استازي چې له شاه جهان بېګم سره وليدل نو دا خبره يې ورته وکړه چې د هغې لپاره به دا

بهتره وي چې بل واده وکړي. ځکه چې اسلام کې د ښځې لپاره د دويم واده اجازه شته

شاه جهان په خپلو يادښتونو کې ډېر په معصومانه تکيو کې ليکي 'هغې د انګرېزانو لخوا يو ليک تر لاسه کړ چې ورته په کې د واده مشوره ورکړل شوې وه. دې خپلو خپلوانو کې وکتل چې څوک دومره علم او شرافت لري چې له دې سره د واده کولو وړ وي. نو څرګنده شوه چې دا محترم (صديق حسن) له تېرو لسو کلونو راهيسې د بهوپال خدمت کوي او زما د مور سکندربېګم منشي هم پاتې شوی و او په ټول بهوپال کې دده غوندې علم له هيچا سره نه و. نو ما د قرآن له تعليماتو سره سم او د انګرېزانو په مشوره دا فيصله وکړه چې زه دويم واده وکړم'

په دې به هغه شيطاني خبرې هم ختمې شي چې زه ولې له يوه پردي سړي سره يوازې يمه او دا خو ښکاره ده چې زه به د حکومت د کارونو لپاره له خپل مشر وزير سره يوازې کېنم. په ۱۸۷۱ کې شاه جهان بېګم له صديق حسن سره واده وکړو او صديق حسن په رسمي توګه د شاه جهان بېګم بې اختياره سرپرست وټاکل شو. قدسيه بېګم لا ژوندۍ وه او اويا کلنه وه. هغې چې دا خبر واورېدو نو ډېره سخته خپه شوه. هغې لا پخوا د شاه جهان او د صديق حسن د اړيکو مخالفت کاوه. د هغې کرکه او قهر لا زيات شو. صديق دا خبره ياد وساتله او د نيا او لمسۍ تر منځ يې فاصله زياته کړه

له واده سمدستي وروسته ده پر شاه جهان فشار راوړ چې د نوابۍ لقب دې هم ورته ورکړل شي او انګرېزانو ورته نواب والاجاه اميرالملک خطاب ورکړ. شاهجهان بېګم په دې دومره خوشاله شوه چې دی يې په يوه هاتي سپور کړ او د جلوس په شکل يې د بهوپال

لاړو ته وویستلو د بهوپال خلکو له هغه دومره نفرت کاوه چې په کور
کښېناستل او هیڅ یې هرکلی ونه کړ مهمه خبره دا وه چې د شاه
جهان بېگم د حمل خبره دروغ وختله له واده وروسته صدیق حسن په
دې خبره ناراضه شو او شاه جهان بېگم ته یې وویل چې دا د هغې د
خپلوانو او د بروکټ پښتنو یو سازش و. هغه شاه جهان بېگم چې د
شعر وشاعرۍ او د موسیقۍ په محفلونو کې به کښېناستله او هغه
صدیق حسن چې په دې محفلونو کې یې خپله هم ګډون کاوه او خوند
به یې ترې اخیست. اوس دواړو د اسلام د سپېڅلي دین په درناوي د
پردې او ستر فیصله وکړه. یانې دا چې شاه جهان بېګم اوس له پردې
شا ته حکومت کاوه او د خلکو مخې ته به نه راتله. تر واده له مخه چې
صدیق حسن څه ډول ژوند کاوه له واده وروسته ورته هر څه عیب
ښکاره کېدل د پوښتنې وړ و. شاه جهان بېګم په دې کار له عملي پلوه
د بهوپال واک صدیق حسن ته وسپارلو او د کوم واک اختیار لپاره
چې د هغې مور او نیا نیمه پېړۍ وړاندې مبارزه کړې وه هغه یې له
لاسه ورکړ. د صدیق حسن په لمسون شاه جهان له خپلې نیا قدسیه
بېګم سره هم اختلاف پیدا کړ. تر دې حده چې هغه به یې خپل کور ته
نه رابلله او کله چې د سلطان جهان واده و نو هغې ته یې اجازه
ورنکړه چې خپلې لمسۍ ته سوغات راوړي.

تر ټولو مهمه خبره دا وه چې د بهوپال اورکزي پښتانه د صدیق
حسن له غروره او د هغه له فیصلو په عذاب وو. خو د هغه د
موجودیت تر ټولو لوی ګوزار د سلطان جهان په ژوند و چې له مور
سره یې اړیکې د ورځې په تېرېدو سره خرابېدل.

×××

د صوبه سرحد په لوېديځ کې د تيرا غرونه دي، چې په کې د اپريدو نهه قامونه ملک دين خېل، سپاه، کوکي خېل، اکا خېل، زکا خېل، کمبرخېل، حسن خېل او ادم خېل اباد دي. په ۱۷۷۲ م کال کې د اورکزيو د يوه سردار نورمحمد خان په کور کې يو ماشوم وزيږېد چې په دوست محمد خان ونومول شو. مور پلار يې ډېر خوشاله وو. د پينځو کالونو په عمر کې د قران د لوست او ديني زده کړو لپاره ورته يو استاد وساتل شو، دا استاد ملا جمالي نومېده چې د بدخشان اوسېدونکی و. دوست محمد خان چې د اس د سورلۍ شو، نو پلار ورله يو اس ورکړ. له دې سره سره يې د توري او غشي ويشتلو تربيه هم ترلاسه کړله. ۱۷ مه پېړۍ چې په ختمېدو وه، نو دوست محمد خان يو تکړه او غښتلی ځوان و. هغه وخت د هندوستان پر تخت د مغولو پاچا اورنګزېب ناست و او د خپل سلطنت ساتلو لپاره له مرهټه وو سره په جنګ وو. د مغول دربار د شان او د هند د شتمنۍ کيسې هر چا اورېدلې وې. له تيرا نه هم ځوانانو ډېلي ته د تللو ارمان درلودلو. ځينې ځوانان د دوست محمد خان له سيمې هم هندوستان ته ورغلي وو او د مغولو په پوځ کې به شامل شول، نو ډېره ښه تنخوا به ورته ورکول کېده. هندوستان ډېره لويه مځکه لري او د هر يو رياست والي ته به د پوځ لپاره مېړني ځوانان پکار وو. د پوځ لپاره تکړه ځوانان او ښه اسونه د پښتنو له سيمو هم ور تلل. په تيرا کې ځينو کورنيو د دې جنګيالو لخوا په رالېږلو پيسو خپل ژوند ته وده ورکوله. په ۱۲۹۷ کال کې دوست محمد خان له ۲۰ کالونو اوښتی و او تل به ناکراره و. مور و پلار ورله د يوې بلې اورکزۍ کورنۍ نجلۍ غوښتې وه چې معراج بي بي نومېده، خو دوست محمد خان لکه د

د ۱۸۷۱ م کال د بهوپال خلکو د سلطان جهان د نشرح د جشن په توګه یاد وساتلو خو دا کال د شاه جهان د دویم واده کال هم و.

سلطان جهان په لومړي ځل د صدیق حسن له منفي شخصیت سره مخامخ شوه. دا له وړوکوالي راهیسې د جلال اباد یوه اورکزي احمدعلي ته ناسته وه او هغه یې د خپل ژوند ملګرې منلی و. له ده سره یې د ځوانۍ مینه هم پیدا شوې وه خو اوس صدیق حسن د هغې د پلندر په رول کې وربانديې فشار راوړو چې دا کوژدنه دې ختمه کړي او دده له زوی نورالحسن سره دې واده وکړي چې د لومړۍ مېرمنې نه یې و. شاه جهان به د صدیق هره خبره منله او په دې معامله کې یې هم څه اعتراض ونه کړ. خو سلطان جهان سکوت انکار وکړ هغې د احمد علي نه علاوه بل هېڅوک نه غوښتل.

شا ه جهان انګرېزانو ته ولیکل چې دوی څه مشوره ورکوي. هغوی هېڅ اعتراض ونه کړ. بیا دې له خپلو سردارانو او نورو امیرانو سره مشوره وکړه دوی هم په دې واده ورسره رضا شو. خو صدیق حسن د دوی واده تر یوه کاله پورې وځنډاوه. په دویم ګام کې ده احمد علي له شاهي ماڼۍ نه وشړلو او دی له خپلې مور سره په یوه بل سرکاري کور کې مېشت شو. ده هڅه کوله چې د احمدعلي کمزوري پیدا کړي یا دی مجبور کړي چې ورته نافرماني وکړي خو احمد علي هوښیار ځوان و. پدې پوهېدو چې یوه معمولي خبره به د واده د ختمېدو سوب وګرځي. اخر په ۱۸۷۵ م کال کې احمد علي د احتشام الملک او د سلطان الدوله له القابو سره سلطان جهان په ډولۍ کې خپل کورته بوتله.

کله چې شاه جهان بېګم د پردې شاته پټه شوه نو په رسمي دربارونو کې يې د بهوپال د نوابۍ په توګه له ګډون نه ډډه کوله او د عذر په توګه يې انګرېزانو ته وليکل چې د دې استازيتوب به يې مېړه صديق حسن کوي.

د انګرېزانو له خوا په ۱۸۵۷ م کې د خپلواکۍ د پاڅون له بريالیتوب وروسته په بېلا بېلو صوبو کې دربار رابلل کېده. دې دربارونو که يوې خوا ته نوابانو او راجه ګانو ته موقع ورکوله چې له يوه بل سره ووينې. نو بل خوا به انګرېزانو د دوی د سيمو په باب اورېدل چې دوی نوې تګلاره څنګه پلې کوي. په دوديزه توګه نوابانو او راجه ګانو د عيش او ارام ژوند کولو او په دې دربار کې به دوی خپل نوکران او خدمتګاران هم ځان سره وړل. د استوګنې لپاره به دوی خېمې لګولې او لکه د يوې لويې مېلې غوندې حالت به جوړ شو. په رسمي غونډو کې به د هر چا ځای معلوم و. د راجه ګانو او نوابانو ځای ناستې به هم په کې شاملېدل او د دوی ځای به معلوم و. د دوی د مېرمنو ځای به تل د غونډو په وروستيو ليکو کې و. په ۱۸۷۷ م کال کې انګرېزانو شاه جهان ته د يو اعزاز ورکولو اعلان وکړ. نو هغې د صديق حسن نوم وړاندې کړ، چې د هغې پر ځای به دی دا اعزاز ترلاسه کړي. خو انګرېزان په دې پوهېدل چې صديق د واک ترلاسه کولو په لاره روان دی. دوی انکار وکړ او ورته يې وويل چې په خپله به دربار او نورو سرکاري سفرونو ته ورځي.

له واده وروسته سلطان جهان په شپږو کلونو کې پنځه ماشومان وزېږول. لومړی لور يې بلقيس جهان نومېده. له دې وروسته په ۱۸۷۲ م کې د دې زوی محمد نصرالله خان وزېږېد. چې د څلورو واکمنو بنځو نه پس لومړی هلک و. ورپسې عبيدالله خان او يوه بله

لور آصف جهان پیدا شوه. څوارلس کاله وروسته ددې زوی حمید الله خان په ۱۸۹۴ کې وزیرېد چې د بهوپال راتلونکی نواب و.

په دې کلونو کې چې سلطان جهان کال پر کال اولاد زېږولو. د شاه جهان بېګم او د صدیق اولاد نه کېده. دوی د اولاد لپاره ډاکټرانو، حکیمانو، پیرانو او عالمانو ته ولاړل چې پکې هندوان او مسلمانان دواړه شامل وو. خو فایده یې ونه کړه. په دې وخت کې د بهوپال ټولنه هم په دوو برخو وویشل شوه. یو هغه وهابي او محکمه وال وو چې په صدیق حسن راټول وو. دویم هغه پښتانه چې د باقي محمد د کورنۍ او د جلال اباد نه له احمدعلي سره ورغلي وو. د سلطان جهان تر ټولو لوی ملاتړ د هغې د مور نیا قدسیه بېګم وه.

د مور او لور تر منځ رابطه به د سلطان جهان د مشر لور بلقیس جهان له لارې کېده چې په ورځ کې به یو ځلې د خپلې نیا سلام ته ورتله.

صدیق حسن د حکومتي کارونو لپاره ټول خلک په خپله لګول. د پولیس مشر، مشر وزیر میرمنشي او دغسې نورې مهمې څوکۍ یې د خپلې خوښې خلکو ته ورکړې.

په ۱۸۷۷ م کال کې صدیق حسن یو دربار راوبللو او په خپله یوه اوږده وینا کې یې د سکندربېګم د وخت او د هغې پر حکومت نیوکې وکړې. اوسنی دور یې وستایلو او د باقي محمد د دوو زامنو لطیف محمدخان او مجید محمدخان په اړه یې وویل چې د دوی له احمدعلي سره پټې رابطې دي او سازشونه کوي.

سلطان جهان او احمدعلي هغه ګړۍ هلته ناست وو، خو هېڅ غږ یې ونه کړ. خو هغې دا هر څه په خپلو یادشتونو کې ولیکل.

په ۱۸۸۱ کې د هندوستان ټول واکمن کلکتې ته په یوه دربار کې مېلمانه شول. شاهجهان له خپلې ځای ناستې سلطان جهان سره وربلل

شوي وه. شاه جهان د صديق حسن په بدرګه هلته ولاړه. د انګرېزانو له خوا د هر يوه نواب او راجه لپاره بېله چوکۍ او د سلطان ځای ناستو لپاره يې بېلې چوکۍ وې. سلطان جهان ليکي چې کله هغې له وايسرای سره ستړي مه شي کول نو صديق حسن ولاړ و او هغې ته تاکل شوې چوکۍ باندې کښېناست. په دې وخت کې د انګرېزانو د مراسمو مشر راوراندې شو. له هغه يې غوښتنه وکړه چې دا ځای دې پرېږدي. په دې خبره صديق حسن سخت په قهر شو او انګرېزانو ورته په سخته وويل چې دی هلته نشي کښېناستلی. دی مجبوره شو چې هغه ځای سلطان جهان ته پرېږدي.

د ورځو په تېرېدو سره د قدرت لپاره د صديق حسن حرص او د سلطان جهان لپاره مشکلات زياتېدل.

په ۱۸۸۱م کې قدسيه بېګم د ۸۲ کلونو په عمر کې مړه شوه. صديق حسن يوازې د بهوپال واکمني نه غوښتله. هغه د وهابي عقيدې تبليغ هم کاوه او د انګرېزانو پر ضد د رسالو او کتابونو چاپولو لپاره يې د بهوپال له خزانې پيسې اخيستې او علماوو ته به يې ورکولې، چې په جوماتونو کې وعظونه وکړي. هغه په سوډان کې له مهدي سره اړيکي جوړ کړي وو او له دې پرته يې په ترکيې، عربستان او برما کې له انګرېز مخالفو ځواکونو سره رابطې وې.

انګرېزان په دې خبر وو او شاه جهان بېګم ته يې څو وارې ويلي وو چې د ده فعاليتونو ته پام وکړي. هغې به ورته په ځواب کې وويل چې ددې سرپرست د حکومت په معاملو کې هېڅ لاس نه لري. د انګرېز استازی سر ليپل ګريفين د صديق حسن په فعاليتونو دومره نا ارامه وو چې خپل حکومت ته يې دده پر ضد د ګام اوچتولو غږ وکړ. خو د هند وايسرای لارډ ډفرين د بهوپال نوابه کورنۍ خپه کول نه غوښتل.

په ۱۸۸۵م کال کې د برتانیا حکومت په بهوپال کې د استخباراتو یوه داسې شبکه یا جال جوړ کړی و. چې د صدیق حسن د هرې ګړې حال به یې معلوموله نوموړي د انګرېزانو د تهدید نه وروسته په پټه خپل کارونه سرته رسول.

په ۱۸۸۵م کال کې سر لیپل ګریفین بهوپال ته ولاړ. یو دربار یې راوغوښت چې په کې د صدیق موجودیت لازم و. د بهوپال په خلکو کې ګنګوسې وې چې دی به د صدیق حسن په اړه یوه مهمه فیصله کوي. د شاه جهان بېګم پښتنو امیرانو که څه هم له صدیق حسن څخه بد وړل. خو هغې ته یې ډاډ ورکړی و. چې که انګرېزانو په دربار کې د بېګم نواب یا د هغې د سرپرست سپکاوی وکړ نو دی به ژوندی له بهوپاله ونه وزي.

ښاغلي ګریفین په خپله وینا کې د شاه جهان بېګم د اصلاحاتو او د هغې د انتظام ستاینه وکړه. نو د دربار خلک ارامه شول. بیا هغه د صدیق حسن د پټو سیاسي فعالیتونو خبره وکړه او دا چې هر څوک د برتانیې د حکومت پر ضد عمل کوي هغه به د امتیاز تایټل څخه بې برخې وي. نو ځکه د صدیق حسن ټول القابات او امتیازات بېرته ترې اخیستل کېږي. هغه د خپلې وینا په وروستیو کې د رشوت خورو غندنه وکړه او د صدیق حسن له خوا ټاکل شوي دوه بدنامه په درغلۍ او فساد تورن افسران یې ونیول او په خپله یې دوی ته په لاسونو کې ولچکې ورواچولې.

شاهجهان بېګم او صدیق حسن په خاموشۍ دا هر څه وزغمل. له دې وروسته تر ټولو مهمه فیصله د انګرېزانو له خوا دا وه چې د صدیق حسن د بدانتظامي له کبله به د برتانیا حکومت په خپله د بهوپال مشر وزیر (Cheif minister) ټاکي. نوابه به په ټولو

مراسمو کې د مشرې په توګه پاتې وې خو د حکومت چارې به د مشر وزیر په لاس کې وې. دوی عبدالطیف خان چې د باقي محمدخان زوی و پر دې ځای وټاکلو. خو د شاه جهان بېګم لپاره دا د منلو وړ خبره نه وه. هغې د خپلې کورنۍ پښتانه نه غوښتل او اخر عبدالطیف خان څلور میاشتې وروسته له خپلې عهدې استعفا ورکړه.

انګرېزان په دې خپه وو. خو شاهجهان بېګم ورته وویل چې دا د یوه هندوستاني امر ته سر نشي ټیټولای. نو ښه به دا وي چې مشر وزیر دې یو انګرېز وټاکل شي. کله چې انګرېزانو دې ته غاړه کېښوده نو دې سمدستي د کرنل بروک نوم وړاندې کړ. دی په کلکته کې اوسېده او له صدیق حسن سره یې نژدې اړیکې وو. ګریفین پر دې پښه کېښوده او نه یې غوښتل چې صدیق حسن بیا نفوذ ومومي. بالاخره د کرنل وارډ په نوم یو تن مشر وزیر وټاکل شو. دی هغه وخت په شمله کې و او کله چې دی د خپلې دندې لپاره ونومول شو نو له بهوپاله د شاه جهان بېګم له خوا یو استازی ورته ولاړو او له ده یې وپوښتل چې ایا مېرمن وارډ به ګاڼې په سوغات کې ومنې. وارډ په دې خبره ټکان وخوړو او سمدلاسه یې انکار وکړ. دی پوه شو چې په بهوپال کې یو څه لوبه روانه ده. د وارډ په راتګ د صدیق حسن زور مات شو. هغه له سلطان جهان بېګم سره زړه سوی لاره او که څه هم د شاه جهان بېګم دی نه خوښېده چې هغه تګلاره ومنې خو د انګرېز وزیر لپاره هغې خپله ویلې و. هغې داسې احساس کاوه چې ددې هر څه تر شا یې د لور سلطان جهان لاس دی.

صدیق حسن د شاه جهان بېګم د خاوند کېدو له کبله د انګرېزانو له خوا له سختې سزا پاتې شو. ګریفین خپل حکومت ته ویلې وو چې دی دې تورو اوبو ته واستول شي خو وایسرای یې مرستې ته راغلی و.

په دې وخت شاه جهان بېګم ځان ته بېله ماڼۍ جوړه کړې وه چې تاج محل نومېده او ډېر ژر له صدیق حسن سره دې ماڼۍ ته کډه شوه. له دې سره د شاه جهان لمسۍ بلقیس بېګم هم وه. چې د هغه وخت د ډېرو مسلمانو کورنیو له دود سره سم خپلې نیا لویوله. بلقیس اوس د ۱۲ کالو وه او په دې خبرونو وارخطا شوه چې شاه جهان بېګم د صدیق کشر زوی علي حسن چې هغه وخت نولس کلن و د واده لپاره بلقیس ورته کښېنوي او ډېر ژر یې د کوژدنې اعلان کېدونکی و.

په دې ورځو شپو کې بلقیس ډېره سخته ناروغه شوه او په نوابي کورنۍ کې داسې ګنګوسې شوې چې د صدیق حسن کورنۍ ورباندې څه ټوټکې (کوډې) کړې دي. تر څو میاشتو د هغې علاج کېدو چې بیا وروسته یو څه روغه شوه نو د خپلې مور لیدو ته ورغله. سلطان جهان د خپلې لور په ژېړ مخ او کمزري بدن ډېره وځورېده او هغه یې په خپل کور کې ایساره کړه. شاه جهان په دې کار ناراضه شوه او په پیل کې بلقیس هم خپه وه. خو وروسته د خپلې مور په احساساتو پوه شوه اوس به هغه هره ورځ د نیا لیدو ته له یوې ماڼۍ نه بلې ته ورتله. دې سره د هغې ناروغي بیرته راوګرځېده. د بلقیس د ژوند هیله چې ختمه شوه نو یوه ورځ سلطان جهان د خپلې مور ماڼۍ ته ورغله له هغې یې ښښنه وغوښتله او ورته یې وویل:

د بلقیس لیدو ته دې راشې. خو شاه جهان دومره مروره وه چې د هغې خبره یې ونه منله. خو څو ورځې وروسته دولس کلنه بلقس مړه شوه. د مور او لور تر منځ د روغې جوړې یو بل ور وتړل شو. شاه جهان تر پنځو کلونو پورې هڅه کوله چې د صدیق حسن په اړه د انګریزانو مخالفه رویه واړوي او هغه ته خپل امتیازات او القابات بیرته ورواخلي. هغې د یوې پټمنې مېرمنې په شان له انګریزانو سره

د خپل خاوند په دفاع کې خبرې اترې کولې د پېرنګیانو استازي بدل
رابدل شول او دوی په دې غور کاوه چې صدیق حسن ته خپل
امتیازات بېرته ورکړي، چې هغه وخت د تور ژېړي (یرقان) په
ناروغۍ اخته شوی و. په ۱۸۹۰ کې دا څرګنده شوه چې دی د مرګ
غاړې ته نژدې دی. انګرېزانو خپل ډاکټر ورواستاوه خو د هغه کټ ته
لا پخوا لس حکیمان او یو هندو جوتشي ولاړ وو. څو ورځې وروسته
صدیق حسن مړ شو خو شاه جهان بېګم بیا هم هڅه کوله چې د هغه له
نامه تهمت لرې کړي. انګرېزان پردې رضا شول او له مرګه وروسته
یې صدیق حسن ته د نواب خطاب بېرته وروبانښه.

پرته له دې چې څوک د صدیق حسن د اغېزو په رڼا کې د شاه جهان
قضاوت وکړي، د هغې د دورې کارونه به په نظر کې ونیسو. په
بهوپال کې د اورګاډي د راوستو پلان د سکندر بېګم په ژوند کې پیل
شوی و او د پیسو د کمي له کبله څو کاله ډېر ورو کار پرې روان و.
قدسیې بېګم له خپلو شخصي پیسو ورته بودجه (بجټ) برابره کړه. د
دوی دواړو په ژوند کې د اورګاډي راتګ ونشو. خو اخر په ۱۸۸۴ م
کال کې لومړی اورګاډی بهوپال ته ورداخل شو. شاه جهان بېګم په
برتانیا کې د ووکنګ په سیمه کې لومړی جومات جوړ کړ، چې په
اروپا کې هغه وخت د عبادت لپاره لومړی جومات ګڼل کېږي. له دې
نه پرته یې په بهوپال کې تاج المساجد جوړ کړ. چې د هندوستان تر
ټولو لوی جومات و. د دې دوره ۳۳ کاله وه چې په دې کې هغې د
فنون، علم او د مذهب لپاره ډېر کارونه وکړل. د ښځو د تعلیم لپاره
یې اداري جوړې کړې. د روغتیا لپاره کلینیکونه او د مساپرو لپاره
یې سرایونه جوړ کړل. هغه هنرمندان چې خلکو به ورته په سپکه
سترګه کتل عزت یې ورله ورکړ او د دوی د استوګنې لپاره یې

مځکې او کورونه ورکړل. د هغې لوی کار په علي ګړ کې د مسلمانانو لپاره د لومړي پوهنتون جوړېدو ته پیسې ورکول و. دا په خپله یوه لیکواله او شاعره وه. په اردو او فارسي کې یې لیکنې کولې او د تاجور او شیرین تخلص یې کارولو. فارسي دیوان یې دیوان شیرین نومېږي. اردو کې مثنوي، صدیق البیان. تاج الکلام او نثر یې تهذیب النسا په نوم چاپ شوي دي. د هغې په وخت په بهوپال کې ارامي وه.

په ۱۹۰۱ م کې شاه جهان بېګم د خولې په سرطان اخته شوه. هغې له علاجه ډډه وکړه. سلطان جهان د مور د حال په اورېدو د هغې نه د بښنې لپاره ورغله. دوی دواړو دیارلس کاله له یوه بل سره خبرې نه وې کړې. سلطان جهان له ځان سره خپل اوه کلن زوی بوتلو چې شاه جهان هېڅ نه وو لیدلی. شاه جهان د مرګ په بستره پرته وه او خپلو خلکو ته یې پیغام استولی و: "که زما په رعیت کې څوک داسې وي چې په تېرو ۳۳ کلونو کې یې زما له لاسه بې ګناه سزا خوړلې وي نو زه دوی ته وایم چې د خدای لپاره دې ما وبښي".

سلطان جهان د خپلې مور د لیدو حال په خپلو یادشتونو کې لیکي:

"زه د هغې کټ ته ورنژدې شوم. هغې زه ونه پېژندلم. پوښتنه یې وکړه 'ته څوک یې' زه وېرېدم هېڅ ځواب مې ورنه کړ. هغې بیا وپوښتل: ما بیا ځواب ورنه کړ. درېیم ځل چې یې پوښتنه وکړه. نو خدمتګارې زما نوم ورته واخیست. هغې د افسوس او قهر په ګډ غږ کې وویل: "ما پرېږده زما له مړینې وروسته بیا دلته راشه". زه لا بیا هم ورته ولاړه وم چې هغې راته بیا په سختۍ خپله خبره وکړه. زه پوهېدم چې هغه زما په لیدو ناارامه وه نور مې طاقت نشو کولای او له هلته نه په اوښکو راووتلم. شاه جهان بېګم په ۱۹۰۱ م کال کې مړه شوه

کاوا که اس ژوند کاوه. په نه څه خبره به یې توره رااېستله او وینه به یې تل په جوش کې وه. د معراج بي بي مور و پلار چې دا حال ولید. نو ویې پتېیله چې خپله لور د دوست محمد خان یوه بل تربره ته ورکړي. دا خبره د دوست محمد خان لپاره د منلو وړ نه وه. خو څرګنده نه ده چې ایا دی پخپل سپکاوي ناراضه و او که معراج بي بي وربانديې ډېره ګرانه وه، خو د ځوانۍ جوش او د دوست محمد خان کاوا که طبعیت اخر دې ته ورساوه چې خپل تربور یې ووژلو.

په دې کړنه نه یوازې د هغه د قام خلک پر ده په قهر شول، بلکې د هغه خپله کورنۍ مور و پلار هم ناراضه شول او دوست محمد له قامه وایستل شو. د ده لپاره بې له دې بله هېڅ چاره نه وه چې له خپل اخوره (طبیلې) یو ښه اس واخلي او خپل ټاټوبی پرېږدي. ده ختیز لوري ته مخه کړه او جلال اباد ته ولاړ.... (دا د ننګرهار جلال آباد نه بلکې د ډیلي په شمال لوېدیځ کې سل میله لرې یو ښار دی.)

دی له تیرا نه د جلال آباد په لاره د پېښور، لاهور امرتسر او پنجاب له تولې ښېرازې مځکې تېر شو. د لارې په هر یو سرای کې به یې پښتانه لیدل او له دود سره سم به هغوی ورته غېږه خلاصه کړه. د ډوډۍ، استوګنې او د وخت د حالاتو د خبرېدو لپاره څه مشکل نه و. څو میاشتې وروسته له جلال آباد سره نژدې د لوهارې په سیمه کې د سردارجلال خان مېلمه شو. دی هم اپرېدی و او د دوست محمد په لیدو ډېر خوشاله شو. په خپل مېلمستون کې یې د هغه د استوګنې بندوبست وکړ. سردارجلال خان په لوهارې کې د مغولو منصب دار و او د ده نیکونو ته هلته ځمکې ورکړل شوې وې چې وربانديې د ده خپل تېر ژوند کاوه. دوست محمد د سردارجلال خان د کورنۍ له ځوانانو سره د اس ځغلولو، د غشي ویشتلو او غېږې اېستلو سیالۍ کولې.

# بهوپال

## د هندوستان پښتانه

لیکواله
صفیه حلیم

۱۳۸۷ وری






کندهار، انصاري واټ، ملا زمان جومات ته څېرمه.
کور نومره ۷۸۲
پوست بکس ۵۱۹۲، کابل-افغانستان
ټيليفون ۰۰۹۳۷۰۳۰۳۰۵۴ يا ۰۰۹۳۷۷۷۳۰۳۰۵۴
www.sbp.af

آی ایس بي اېن ISBN-978-9936-406-00-1

## بهوپال - د هندوستان پښتانه

ليکواله: صفيه حليم
خپرونکی: سالنګ کتاب خپرونکي
د خپرولو لړ: يو
د خپرېدو نېټه: وری ۱۳۸۷/ مارچ ۲۰۰۸
د خپرېدو ځای: کابل - افغانستان
شمېر: ۵۰۰۰ ټوکه
د چاپ نوبت: لومړی
ټايپ: قاسم خان مندوخېل
کمپوز: کتاب خپرولو صندوق-هېنداره
د پښتی طرح: ميرويس مياخېل

# نیولیک

# یادښت

بهوپال-د هندوستان پښتانه، په هندوستان کې د پښتنو په اړه د تکړه لیکوالې او خبریالې صفیې حلیم په زړه پورې څېړنه ده چې تر دې وړاندې په هندوستان، په ځانګړې ډول د بهوپال د پښتنو په اړه نه وه شوې. سره له دې چې په هندوستان کې د پښتنو په اړه یو شمېر څېړنې شوې خو دغسې څېړنه لکه صفیې حلیم چې کړې پخوا نه ده لیدل شوې، دغه کتاب لوستونکیو ته په هندوستان کې د پښتنو په اړه بېلابېل غني معلومات ورکوي. کتاب داسې انځوریز لیکل شوی چې په لوستلو یې سړی داسې فکر کوي لکه د بهوپال د پښتنو په اړه دا کیسې پخپلو سترګو ګوري.

سالنګ کتاب خپروونکې ویاړې چې د تکړه لیکوالې او خبریالې صفیې حلیم دغه ارزښتمن او په زړه پورې اثر لوستونکو ته وړاندې کوي. او د ویاړ ځای دی چې په پښتنو مېرمنو کې موږ د صفیې حلیم په څېر یوه هستي لرو چې وخت پر وخت یې د پښتو ژبې مینه والو ته د خپل قلم او پوهې له لارې ملغلرې وړاندې کړې دي.

هیله ده پښتنې د صفیې حلیم پر پله- پل واخلې او د ژوندد دورو له بدلېدو سره قلم پربنږدي. اغلې حلیم له (بهوپال-د هندوستان پښتانه) کتاب څخه مخکې ۷ ځانګړې اثار مینه والو ته وړاندې کړې چې هر یو یې د لوستونکیو په تاوده هرکلي لمانځل شوی دی. صفیې حلیم نه یوازې د خپلو کتابونو له لارې د پښتنو د بېدارۍ هڅه کړې، بلکې ددې تر څنګ یې د ځوان او نوي کول په روزلو او هڅولو کې هم خورا ډېرې سترپاوې ګاللې دي.

د یادونې وړه ده چې بهوپال – د هندوستان پښتانه هغه کتاب دی چې په افغانستان کې د لومړي ځل لپاره وربانديې د کتاب خپروني نړیواله شمېره International (ISBN) Serial Book Number کارول کېږي. تر دې مخکې پر افغاني کتابونو پر نړیوال معیار برابر دغه شمېره نه وه. په داسې حال کې چې (ISBN) له تېرو څه باندې دېرشو کلونو راهیسې د نړۍ په نورو هېوادونو کې کارول کېږي. دغه معیاري شمېره د دې کتاب خپرندویې ټولنې پر لومړي خپرېدونکي کتاب راځي.

سالنګ کتاب خپروونکې ویاړې چې د یوې داسې تکړه لیکوالې او خبریالې اثر خپروي چې د پښتنو په زړونو کې یې خپل کور اباد کړی دی.

په درناوي
سالنګ کتاب خپرونکي